

د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف لوی رياست

# د ښوونکي کتاب
# د پښتو ژبې د تدريس لارښود

## شپږم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۵هـ.ش.



**ليکوالان:**

- د سرمولف مرستياله فروزان خاموش
- سرمولف امين الله نژند
- مولف شکيلا دوست

**ديني، سياسي او فرهنگي کمېټه:**

- محمد آصف کوچی
- حبيب الله راحل د تعليمي نصاب د پراختيا په لوی رياست کې د پوهنې وزارت سلاکار.

**د څارنې کمېټه:**

**ـ دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معين**

**ـ دکتور شيرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤل**

**ـ سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس**

**کمپوز او ډيزاين:**

**ـ صدرالدين ابراهيم خيل**



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی          دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د توري          هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی          د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو          د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي          پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي          هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي          لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به          لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر          وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدایﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرګانه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پرګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایی پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده‌کړې د نوو میتودونو له لارې زده‌کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده‌کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده‌کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده‌کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده‌کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# لړلیک

# له ښوونکو سره يو څو خبرې

## درنو ښوونکو!

د ښوونکې لارښود هغه مرستندوى کتاب دي چې د شپږم ټولګي ددرسي کتاب دښه تـدريس ا و لارښـوونې لپاره مرسته کولاى شي.

دغه مرستندوى لارښود کتاب ځکه د ښوونکو لپاره ليکل کيږي چې په لومړي ګام کې په درسي کتـاب دبيـا کتنې په اړتيا باندې پوه شي اودغه راز په درسي کتاب کې دانځورونو دلوست، هڅوونکو پوښتنو اوفعاليتونو په موخو اوهمد غو موخو ته درسيدو لپاره دتدريس په ميتودونو او لاروچارو لاښه وپوهيږي اودلوست ورکولو پـه برخـه کـې به ديو مرستندوى کتاب په توګه ترې کار واخلي.

د شپږم ټولګي درسي کتاب باندې دتعلمي نصاب دپراختيا اودرسي کتابونو د تاليف دريسرچ درياست له خوا دنظر غوښتلو کار پيل شو په نوموړي نظر غوښتنې کې چې کومې نظريې راټولې شوې اوواقعا ددرسي کتـاب پـه بيـا کتنه کې په اوس وخت کې ګټورې وې هغه هم په کې ونيول شوې اودغه راز دنصاب درياسـت دپـښتو څـانګې لـه مولفينو سره هم شپږم ټولګي ددرسي کتاب په باره کې يوشمير نظرونه موجود وو هغه يې هم په پام کې ونيول اوبيـا يې درسي کتاب په بيا کتنه باندې پيل وکړچې وروسته به ورباند ې په ترتيب سره خبرې وشي.

په دغه لارښود کتاب کې د بيلابيلو موخو ته دزده‌کوونکو درسيدو لپاره لارې چارې پـه ګوتـه شـوي اودهـر لوست دتدريس درسي ساعتونه هم پکې ښودل شوي اوخبرې پرې شوي دي.

ښه به وي چې په دې لارښـود کتـاب کـې دبيلابيلـو برخـو ترروښـانولو دمخـه دمعلـم محـورۍ اودمـشارکتي زده‌کړې په هکله لنډې خبرې وکړو. اوبيا وروسته دتدريس په اصولو خبرې وشي.

### د معلم محورۍ زده‌کړه:

زموږ په هيواد کې پخوا د معلم محورۍ په چوکاټ کې زده‌کړه کيدله. دزده‌کړې ټول فعاليتونه بـه ښـوونکی سرته رسول اوزده‌کوونکو به يوازې دليدونکو اواوريدونکو دنده سرته رسوله. په دغه ډول زده‌کړه کې به دفعـاليتونو دسرته رسولو ټول فشار په ښوونکي و.

په ټولګي کې به ترې لږ شمير بااستعداده زده‌کوونکوګټه پورته کوله، دتدريس په دغه ډول زده‌کړه کې زياتو زده‌کوونکو ځکه ګټه نشوه اخيستلاى اوله زده‌کړوڅخه وروسته پاتي کيدل چې په فعاليتونوکې ورته برخه نه ورکول کيده. په دې ډول زده‌کړه کې زده‌کوونکو په پوهنيزه، مهارتي اوذهنيتي برخه کې کافي ونـډه نـه درلـوده. دسـاينس اوتکنالوژۍ د زيات انکشاف او پرمختګ لپاره اړينه وه چې د ښوونې او روزنې پوهان په درسي نصاب اودتدريس په اصولوکې داسې لارې چارې ولټولې چې زده‌کـوونکي وکـولاى شـي د زده‌کـړې پـه پـوهنيزې، مهـارتي اوذهنيتـي برخوکې فعاله برخه واخلي.

## فعاله او مشارکتي زده‌کړه:

کله چې دښوونې اوروزنې پوهان دمعلم محورۍ په چوکاټ کې په نیمګړتیاوو پوه او په دې فکرکې شول چې باید داسې فعاله او مشارکتي زده‌کړه رامنځته شي چې په هغې کې ښوونکی دلارښود، څارونکي او فعال ګډون کوونکي حیثیت ولري اوزده‌کوونکي په خپله په لوست کې فعاله اوعملي برخه ولري چې زده‌کوونکي وکړای شي دزده‌کړې په بهیر کې خپله دانشي، مهارتي اوذهنیتي پوهه پیاوړې کړي.

په دې ډول زده‌کړه کې ښوونکی یوازې زده‌کوونکي څاري اوله زده‌کوونکو سره په ستونزو کې مرسته کوي. په دې ډول زده‌کړه کې زده‌کوونکي په خپله کارکوي او د ښوونکِ لارښوونو ته ژوره پاملرنه کوي او زده‌کوونکوته په ټولو فعالیتونو کې ونډه ورکول کیږي.

په دې ډول فعالې اومشارکتي زده‌کړه کې ښوونکی دهر لو ست موخه په پام کې نیسي اوزده‌کوونکي نوموړې موخې ته دهغولارو چارو پواسطه ځان رسوي، کومې چې په درسي او لارښود کتاب کې ورته لیکل شویدي.ددرسي کتاب دهرلوست دزده‌کړې دموخو دزده‌کړې لپاره لازمه ده چې له بیلابیلو میتودونو څخه کارواخیستل شي له دې امله په لاندې توګه یو شمیر اړین میتودونه په ګوته کوو.

## د نوو میتودونو ارزښت:

په فعال تدریس کې بیلابیل میتودونه په ګوته شوي دي چې هریوې په خپل ځای دزده کوونکولپاره ګټه لري اولا هم په دې برخه کې څیړنې روانې دي اودهرې ورځې په تیریدوسر ه په تعلیمي نصاب کې نوی بدلونونه رامنځته کیږي.

د ژبو په درسي کتابونو کې پوهان دې ټکي ته متوجې شول چې باید زده‌کوونکي د ژبې د زده‌کړې مهارتونه، لکه :غوږ نیول، لیدل، اوریدل، لوستل، لیکل اوخبرې کول سرته ورسوي. په مشارکي زده‌کړه کې ارزښتونه دا دي چې زده‌کوونکي لیدلو، اوریدلو، غوږنیولو، لوست ویلو،لیکلواوخبروکولو ته هڅول کیږي.

دزده‌کړې په دې سیستم کې د زده‌کوونکو ذهن وده او انکشاف کوي، په ذهنیت کې یې بدلونونه رامنځته، د درک اوتفکر قوه یې لوړیږي، په دې زده‌کړه کې د زده‌کوونکو د زده‌کړې کچه لوړیږي او په راتلونکي وخت کې د خپل رسالت اومسوولیت دزده‌کړې اودرک لپاره چمتو کیږي.

دلارښودکتاب په دې برخه کې په هغو برخوباندې رڼا اچوو چې له ښوونکي سره دفعالې زدکړې په پرمخ بیولواوله مولفینوسره دهم اهنګی اوهم فکرۍ په برخه کې مرسته کوي اودښوونکي لپاره په تدرس کې پوره لارښوونه کولای شي.

## پوهنیزه برخه:

د دې برخې موخه داده چې زده‌کوونکي دلوست په معنا اومفهوم وپوهیږي. او د بیلابیلو موضوعاتو په باره کې یې پوهه زیاته شي. ددې کتاب په ټولولوستونوکې دپوهنیزې برخې دپیاوړ تیا په موخه جملې ورته راوړل شوي. زیات زور په تربیوي اړخ باندې زیات شوی دې.دیوې موضوع په باره کې پوهه ترلاسه کول پوهنیزه برخه ده چې دپوهې ترلاسه کول د زده‌کړې لومړنی شرط بلل کیږي.

## مهارتي برخه:

په زده کړه کې پوهیدل هغه و خت ارزښت اوګټه لري چې زده‌کوونکي په عملي ډول کار وکړي، لوستل وکړای شي اولوستل شوي جملې ولیکلای شي اوپه ورځني ژوند کې ورځخه کار واخلي. په دې نوی درسي کتاب کې دلوستلو اولیکلو دزده‌کړې په موخه فعالیتونه ورکړل شوي دي. له دې امله د درسي کتاب په ټولو لوستونوکې د مهارت برخه په پام کې نیول شوې ده اودغه راز په فعالیتونوکې هم دپوهې اومهارت په برخه کې ورته فعالیتونه راوړل شوي دي.

## ذهنیتي برخه:

له ذهنیتي برخې څخه هدف دادی چې دمتن له لوستلووروسته دزده‌کوونکو دانشي اومهارتي خواپیاوړي شي او دزده کوونکوپه ذهنیت، سلوک او کړو وړو کې بدلون راشي. هغه وخت د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راتلای شي چې زده کوونکي دلوست په مفهوم پوه او له لوست څخه اخیستنه وکړي، له هغه وروسته د زده‌کوونکي په کړو وړو کې مثبت بدلون رامنځته او په خپل ورځني ژوند کې به ترې ګټه واخلي. دکتاب دلوستونو په ټولو برخو کې تر پوهنیزې او مهارتي برخې وروسته د ذهنیتي برخې دپیاوړتیا لپاره جملې راغلي دي او د زده‌کوونکو لپاره مستقیم او غیرمستقیم پیغامونه ورکړل شوي دي.

## د اوریدلو او غوږ نیولو برخه:

د ژبې په زده کړه کې اړینه ده چې د اوریدلو،غوږ نیولو، لوستلو، لیکلو سم لیدلواوخبروکولومهارتونه په پام کې ونیول شي. دکتاب په فعالیتونو کې دپوهنیزې، مهارتي اوذهنیتي برخو په راوړلوسربیره روزنیز پیامونه هم د زده‌کوونکو د پوهې د کچې دلوړولو لپاره راوړل شوي دي. دښوونې اوروزنې پوهانو په تدریس کې بیلابیل میتودونه دفعال تدریس داصولو پربنسټ رامنځته کړي دي لکه،لوستل، لیکل، سوال او ځواب، مقایسوي، خبرې اترې، مشق او تمرین، په یو کسیز، دوه کسیزه توګه فعالیتونه اونور.

دښوونکو بری په دې کې دی چې په خپل مضمون باندې حاکم وي. ددرسي کتاب اودښوونکي دلارښودکتاب د فعالیتونو له مخې لوست پرمخ یوسي اوله مولفینو سره هم فکره اوسي.

څومره چې ښوونکی په ډیرو میتودونو پوه وي اوڅومره چې دلوست په جریان کې له مرستندویه موادوڅخه کار واخلي، په هماغه اندازه زده‌کړه اغیزمنه اوګټوره کیږي او دلوست موخې سرته رسیږي.

په دې ټولوکې ښوونکي ته لازمه ده چې په ټولګي کې لارښوونکی اوڅارونکی واوسي، په ټولګي کې دزده‌کوونکوفردي توپیرونه، لیاقت او استعدادونه په پام کې ونیسي اوټولو زده کوونکوته په کې ونده ورکړل

شي.دمیتودونو دسرته رسولو لپاره لازمه ده چې له مرستندوی توکو څخه کارواخیستل شي اوپه لاندې ډول پرې خبرې کوو.

### د لارښود چوکاټ:

په لارښودکتاب کې مو یوازې هماغه چوکاټ وټاکه کوم چې د پښتو ژبو د شپږم ټولګي د لارښود کتاب لپاره ټاکلی و ښوونکی باید د لارښود د چوکاټ له مخې خپل درسي پلان ترتیب کړي او یو لوست د اونۍ په درسي ساعتونو کې د خپل پلان له مخې ورته تدریس کړي.

ددې کار ګټه داده چې له یوې خوا ښوونکی نه قیدیږي اوخپله به ورته پلان جوړکړي اوبله داچې که په کوم درسي ساعت کې حاضرنه وي په پاتې درسي ساعتونوکې به لوست په پاتې درسي ساعتونو وویشي. ښوونکی به په لومړي درسي ساعت کې دکتاب فعالیتونه په زده‌کوونکو باندې کار وکړي اوکورنۍ دنده به ورکړي اوبه وروستیو درسي ساعتونو کې به دلارښود له فعالیتونو او له کورنۍ دندې څخه کار واخلي او په وروستي درسي ساعت کې په خپله کورنۍ دنده ورته ورکړي.

د لارښود لپاره مو چوکاټ تیار کړی دی د چوکاټ په سرکې لاندې سرلیکونه په ترتیب سره راغلي دي:

- د لوست شمېره
- د ښوونکی لارښود پلان
- د تدریس وخت
- دانشي، مهارتي او ذهنيتي موخې
- د تدریس لارې
- د تدریس میتودونه
- مقدماتي فعالیتونه
- انګیروي پوښتنې
- د ښوونکی فعالیتونه
- د لوست ارزونه
- کورنۍ دنده

## د تدریس توکي:

هغه مواد اونور مرستندوی توکي دي چې په یوې سیمې کې د محیطي موادو په توګه موجود وي او د هغو په واسطه ښوونکی هدف ته پرې ورسیږي. زده‌کوونکو ته تدریس ګټور او په زړه پورې کړي، د تدریس وسیلې او مرستندویه توکي دي.لکه تخته، دالفبا چارټ، انځورونه د کلمو او جملو لیکلي کارتونه اونور د تدریس ښې وسیلې بلل کیږي.کمپیوټر، پروجکتوراوداسې نور.

## ارزونه:

ښوونکي ته لازمه د ه چې دلوست په پای کې دخپل لوست دارزونې لپاره چې زده کوونکوڅومره زده کړه کړې ده. له زده‌کوونکو څخه پوښتنې وکړي. دارزونې ګټه داده چې ښوونکی دارزونې په واسطه هم زده‌کوونکي ارزوي اوځان ارزوي.که چېرې زده‌کوونکي دده په تدریس پوه نشي کولای شي چې دتدریس میتود بدل کړي اویا یې نور لاملونه پیداکړي.

د هر متن د پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي برخې له پوهیدو وروسته د درس د تحکیم، ټینګښت او پوهېدو لپاره ارزونه د درسي پروګرام یو بنسټیز رکن دی چې ښوونکی یې باید په پام کې ولري.

## کورنۍ دنده:

ښوونکی دې زده‌کوونکوته مناسبه کورنۍ‌دنده ورکړي چې زده‌کوونکي یې په کورکې سرته ورسوي. دکورنۍ‌دندې کتنه ډېره مهمه اوارزښتناکه ده. دکورنۍ دندې په سرته رسولوسره زده‌کوونکي خپل مسوولیت احساسوي، له زده‌کړې سره عادت کیږي او د زده‌کړې درجه یې لوړیږي اوله زده‌کړې څخه لرې نه پاتې کیږي. ښه ده چې زده‌کوونکوته دهغوی دپوهې اوپیاوړتیا سره سم بیلا بیلې کورنۍ دندې ورکړل شي.

هغه درسي کتابونه چې له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګیو پورې لیکل شوي او په ۱۳۸۸کال کې چاپ اودتدریس لپاره وړاندې شوي وو، دمشارکتي زده‌کړې داصولوپه اساس لیکل شوي وو.

چې په نسبي توګه یې ښه نتیجه ورکړې ده.

دتعلیمي نصاب دپراختیا اودرسي کتابونو دتالیف لوی ریاست له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې درسي کتابونو باندې دبیا نوی نظر لپاره دریسرچ داصولوله مخې ځینه وشوه دزده‌کوونکو ښوونکو، سرمعلیمنو مدیرانو او دزده‌کوونکو داولیاوونظرونه راټول شول او په راټولو شوو نظرونوباندې دتعلیمي نصاب دپرمختیا اودرسي کتابونو دتالیف دریسرچ دریاست دعلمي غړو له خوا ځینه وشوه ټول نظرونه ډلبندي شول کوم نظرونه چې مثبت اوګټور وو هغه یې په پام کې ونیول.دهر ډول نظرونه فیصدي یې معلومه کړه اودنصاب دهرې څانګې په واک کې په لیکلې ډول ورکړل.دنصاب مولفینوهم نومړي درسي کتابونه ترنظر تیرکړل اوهرمولف په درسي کتاب باندې خپل نظر درلود هر مولف خپل یادداشتونه په خپل ګروپ کې سره شریک کړل

مولفینو خپلې تجربې اولازم نظرونه سره یوځای کړل اودکتابونو په بیا کتنې یې پیل وکړ

دلومړې دورې درسي کتابونه اولاربنود کتابونو باندې بیا کتنه وشوه اوچاپ ته یې تیار کړل.

په پخوانیو درسي کتابونو کې یوازې پوهنیزې خواته ډیره پاملرنه شوي وو خو دپنځم ټولګي په دې نوی درسي کتاب کې دشرایطو او مفرداتو په پام کې نیولو سره دبیا کتنې کارپیل شو اودهرلوست په متن کې پوهنیزه،

مهارتي اوذهنيتي برخې ورزياتي شوي اودغه رازدهرلوست لپاره يوشمير فعاليتونه چې پـه هغـو کـې دانـشي، مهـارتي اوذهنيتي برخې لري هم ليکل شوی دي.

په لارښودکتاب کې دټولو لوستونو لپاره يو عمومي چوکاټ تيارشوي اوډک شوی دی. چوکاټ داسې جـوړ شوی دې چې لومړی دچوکاټ په سرکې دلوست شميره، دلوست مخ دلوست وخت ليکل شوي

هر لوست بايد داوني په درسي ساعتونوکې زده‌کوونکو ته تدريس شي.

موږ ښوونکی نه قيدوو.ښوونکی بايد يولوست داونی ددرسی ساعتونو په پام کې نيولو سره لوست په څوبرخـو وويشي. له چوکات سره سم دې په لومړي درسي ساعت کې لومړی دکتاب له فعاليتونو څخه کارواخلي که دکتاب کوم فعاليت پاتې شو بيا دې دنـورو درسـي سـاعتونو لپـاره دلارښـودله فعاليتونوسـره يوځـا کـړي اوپـه نـورو درسـي ساعتونوکې دې په پام کې ونيسي په زده‌کوونکو دې عملي کړي اوکه وخت و ښوونکی کولای شي دهمد غه ډول فعاليتونو په ډول نور فعاليتونه په زده‌کوونکو باندې سرته ورسوي.

د ښوونکي په لارښودکې موږ لوست په څوبرخو باندې ويشلی نه دې دهرلوست په چوکاټ کـې مـو پـه سـر کې د لوست شيره، د لوست مخ ښودل شوی اوترې لاندې ليکل شوي چې دا لوست داوني پـه درسـي سـاعتونوکې تدريس کيږي له دې کار څخه مو موخه داده چې له يوخوا ښوونکی قيد نه شي اوله بلې خوا د کتاب حجـم زيـات نشي اودغه راز په اقتصادي لحاظ دکتاب په چاپ باندې کم لګښت راشي.اوکه چېرې ښوونکی دنـدې تـه پـه کـوم درسي ساعت کې رانه شي نو په بل درسي ساعت کې به ښوونکی دتيرې برخې لوست هم په وروستي درسي ساعت کې پرمخ يوسي.

ددرسي کتابونو دتاليف په برخه کې په درسي کتابونو بيا کتنه دمعارف له ستراتيژی سره سمه شـوي ده چـې زده‌کوونکي دلومړی دورې تر فارغيدو وروسته په لوستلو اوليکلـو وپـوهيږي. لـه دې املـه لازمـه ده چـې ښـوونکی زده‌کوونکو ته ددغه لارښود کتاب له مخې دزده‌کړې مهارتونـه اوفعاليتونـه پـه پـام کـې ونيـسي او زده‌کـوونکي پـه زده‌کړه کې جسمي او ذهني فعال ګډون وکړي.

د دې لپاره چې ښوونکی دزده‌کړې په ټولو برخوکې برلاسي واوسي، مـوږ ددرسـي کتـاب ټـولې خـواوې او لارښوونې چې په زده‌کړې کې مثبت رول ولري درپيژنو. هيله ده چې درانه ښـوونکی د راتلـونکي تـدريس لپـاره د لارښودکتاب له لارښوونوڅخه ګام په ګام ګټه واخلي.په درسي کتابونوکې هم فعاليتونه ورکړل شوي اوپـه لارښـود کتاب کې هم فعاليتونه ورکړل شوي دي.يوځل بيا وايو چې درانده ښـوونکی کـولای شـي چـې پـه لـومړي درسـي ساعت دکتاب له فعاليتونو څخه کار واخلي اوپه نورو ساعتونوکې دکتاب له پـآتي فعـاليتونو او د لارښـود کتـاب لـه فعاليتونو څخه ګټه واخلي.

## درنوښوونکو!

د شپږم ټولګي دغه درسي کتاب چې ستاسو په واک کې دی، تر بيا کتنې وروسته يـې خپـل قـانوني پړاوونـه وهلي، چاپ اوستاسوپه واک کې درکړل شوی دې. په پخواني درسي کتاب کې دريسرچ درياست لـه خـوا راټـولې شوې بيلا بيلې نظريې و څيړل شوي او د مولفينو وړانديزونه اولازمه نظرونه هم پکې ورزيات شوي دي.

د شپږم ټولګي دغه درسي کتاب د فزيکي جوړښت له مخې ۳ برخې لري:

- د کتاب مقدماتي برخه
- د متن برخه

- وروستي برخه

## د کتاب مقدماتي برخه

-په لومړی برخه کې دکتاب مقدماتي برخه راغلي ده چې په هغې کې دکتاب نوم، د بیا کتنې د کمیټې دمولفینونومونه، د بیا کتنې دکمیټې د غړو نومونه د ژبې، فرهنګي او سیاسي، دیني او د محتوا د کمیټې د غړو نومونه لیکل شوي. د هرې برخې مسوول په خپله برخه کې کتاب لیدلی او د هغو له خوا تیروتنې په ګوته شوي اوسمې شوي دي.ترهغو وروسته بسم الله، ملي سرود، دپوهنې د وزیر پیغام او د کتاب لیک لړ راغلی دی.

-دکتاب په دویمه برخه کې ددرسي کتاب متن راغلی دی.

-په وروستی برخه کې دمعارف ترانه راغلې ده.

## درنو ښوونکو!

په ټول تعلیمې کال کې له رخصتی پرته ۲۸ درسي اونۍ په پام کې نیول شوي دي.په هره اونۍ کې په ابتدایه ټولګیوکې ددري ژبو اودریمو ژبو دزده‌کو ونکولپاره په اونۍ کې ۳ درسي ساعتونه داوس لپاره په پام کې نیول شوي دي. موږ دټول تعلیمي کال د ۲۸ اونیو په پام کې نیولو سره په درسي کتاب کې ټول ۴۴ لوستونه راوړي دي.

موږ ښوونکی ازاد پرې ایښی دی چې خپله دیولوست دتدریس لپاره په درو ساعتونو کې خپل پلان جوړ کړي اویولوست په ۳درسي ساعتونوکې ورکړي اوپه لومړي درسي ساعت کې ددرسي کتاب له فعا لیتونو څخه کار واخلي که وروستی فعالیت پاتي شو د وروستیو درسي ساعتونو کې دلارښود کتاب له فعالیتونو سره دې یوځای اوپه زده‌کوونکودې سرته ورسوي. که چېرې و خت و، کولای شي د همدغو فعالیتونو په څیر نور فعالیتونه هم په زده‌کوونکو باندې سرته رسولی شي او دغه راز په لومړي درسي ساعت کې دې دکتاب کورنی دنده ورته ورکړي په دویم درسي ساعت کې دې لارښود کتاب کې ورکړل شوي کورنۍ دنده ورکړئ اوپه وروستي ساعت کې دې په خپله خوښه فعالیتونه ورته ورکړي.

موږ په متن کې دانشي، مهارتي او ذهنیتي برخې تیارې کړي او په فعالیتونوکې هم په همد ې ډول دانشي، مهارتي اوذهنیتي فعالیتونه ورته راوړل شوي که درانه ښوونکي نور فعالیتونه ورباندې کارکوي، نوباید په همدې ډول باید نور فعالیتونه ورباندې کاروشي. ښوونکی باید په ټولګي کې دخارونکي اومرستندوی په ټوګه کار وکړي اونور ټول کار په زده‌کوونکو وشي.

باید یادونه وکړو چې موږ په هر لوست کې لومړی دلوست شمیره راوړې ده ترهغه وروسته دلوست سرلیک او بیا ترې لاندې د اصولوله مخې تصویرونه او عکسونه راوړي دي.

او هر عکس او انځور د متن یوه برخه بلل کیږي ښوونکی باید د انځور په هکله له زده‌کوونکو څخه کله ناکله انګیز وي پوښتنه وکړي چې په عکس او یا انځورکې څه وینئ؟ له هر عکس او یا انځور لاندې د لوست موخه راغلې ده چې د همدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی او د همدغې موخې په اساس ورته فعالیتونه عیار شوي چې ښوونکی یې په زده‌کوونکوباندې سرته ورسوي او خپله ورسره مرسته و کړي تردې وروسته هڅوونکي پوښتنې راغلي دي. له زده‌کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې د هغوی ذهن لوست ته را وګرزي.

له هغه وروسته دلوست متن راغلی دی په متن کې دانشي، مهارتی اوذهنیتي خواوې په پام کې نیول شوي دي. ترمتن وروسته فعالیتونه راغلي دي، ښوونکی کولای شي چې په لومړي درسي ساعت کې دکتاب له فعالیتونوڅخه

کارواخلي په زده‌کوونکوېي سرته ورسوي اوخپله ورسره مرسته وکړي په دویم درسي او دریم درسي ساعت کې کولای شي دلارښود له فعالیتونو څخه کارواخلي اوپه زده‌کوونکي يې سرته ورسوي. په لومړي ساعت کې دې دکتاب کورنۍ دنده ورکړي او په دویم او دریم درسي ساعت دې خپله کورنۍ دنده ورته ورکړي.

کله چې ښوونکی ټولګي ته ورشي مقدماتي فعالیت به سرته ورسوي یعنې ترهر څه دمخه بایدسلام واچوي چې په زده‌کوونکوکې تربیتي روحیه پیاوړې شي. بیابه دهغوی د تیرې ورځې دغیر حاضری پوښتنه وکړي. حاضري به واخلي. د تیر لوست په هکله به پوښتنه وکړي او بیا به کورنۍ دنده وګوري.بیا به د لوست سرلیک پر تختې ولیکي اودلوست دسرلیک یادتصویر په هکله به له زده‌کوونکو څخه انګیزوي پوښتنې وکړي. وروسته به لوست پیل کړي. په لارښودکتاب کې دلوست ورکولو لپاره چوکاټ ورکړل شوی د چوکاټ سره برابر وړاندې ولاړشئ. موږ د ښوونکي لپاره په چوکاټ کې یوازې دومره لیکلي چې ښوونکی دې مقدماتي فعالیت سرته ورسوي او بس. موخه مو داده چې ښوونکی دې سلام او وروسته کړنې سرته ورسوي.

## لومړی لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | حمد |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>− د پاک الله ﷻ د ښې پېژندنې لپاره به دېني تعلیمات زده او دا روحیه به پکې پیاوړې شي.<br>− د حمد متن به سم ولولي<br>− زده‌کوونکي به الله ﷻ ښه وپېژني چې واحد او لا شریک دی او هره مرسته باید له هغه څخه وغوښتل شي<br>− د څښتن تعالی د ذات په اړه به نوی معلومات ترلاسه کړي.<br>− شعر به په روانه توګه ولوستلای شي<br>− د موجوداتو د خالق د سپېڅلي ذات په اړه خپل نظر څرګند کړای شي.<br>− د یوه مسلمان په توګه به د الله ﷻ د ذات د لاښه پېژندلو سره مینه پیدا کړي. |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ځانګړي او د ډله ییز فعالیتونه |
| د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، قلم، کتابچه او نور |
| ارزونه | شفاهي ارزونه، عملي کار، د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې په کتابچه کې لیکل. |
| د زده‌کړې او تدریس (فعالیتونه) | سلام، احوال، روغبړ کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د نوی لوست پیداکول. |
| | انګیزوې پوښتنې:<br>− تاسو د الله ﷻ د سپېڅلي ذات په هکله څه ویلای شئ؟<br>− آیا د حمد په معنا او مفهوم پوهېږئ؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

– ښاغلی ښوونکی دې مهرباني وکړي په ډېرې خوښۍ او ورین تندي دې د زده‌کوونکو د رخصتۍ د شپو او ورځو د تېرېدو پوښتنه وکړي، او ځانته دې معلومه کړي چې زده‌کوونکو د رخصتۍ مهال څنګه، او څه ډول تېر کړی دې؟
– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د نوی لوست (حمد) یوه برخه له ځان سره په ټيټه خوله ولولي.
– ښوونکی دې د نوی لوست (حمد) یوه برخه په لوړ او مناسب غږ څو ځلې تکرار ولولي.
– ښوونکی دې له بېلابېلو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست په وارسره د ټولګي په مخکې په لوړ آواز ولولي.
– ښوونکی دې د نوی لوست یو یو بیت د املا په توګه زده‌کوونکو ته ووایي.
– ښوونکی دې د نوی لوست نوی لغتونه له معناوو سره پر تختې ولیکي.

| ارزونه | څوک د حمد د شعر دوه بیتونه په روانه توګه لوستلای شي؟<br>څوک د نوی لوست په پوهېدو سره د الله جل جلاله د سپېڅلي ذات په هکله څه ویلای شي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | هر شعراو نظم چې څښتن تعالی د ذات د ستاینې، حکمت او قدرت د بیانولو او څرګندولو لپاره وقف شوی وي حمد بلل کېږي. د پښتو ژبې ګڼ شمېر شاعرانو حمدونه لیکلي دي. حمد له معمول سره سم د غزل په فورم کې لیکل کېږي، خو که چېرې حمد د مثنوی، قصیدې او ازاد شعر په چوکاټ کې ولیکل شي بیا هم حمد ورته ویل کېږي. د پښتودا درسي کتاب د پښتو ژبې متبحر شاعرد خوشحال خان خټک په حمد پیل شوی دی.خوشحال خان خټک د شهباز خان زوی، د یحیې خان لمسی، د ملک اکوړي کړوسی دی. په ۱۰۲۲ هـــ ق کې زیږدلی دی. خوشحال بابا ښکلي حمدونه ویلي او په کلیاتو کې یې چاپ شوي دي. دا دی اوس موږ لومړی لوست په همدې حمد پیلوو. |

## دويم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | حضرت محمدﷺ |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د حضرت محمدﷺ د لوړ شخصيت په هکله به معلومات ترلاسه کړي.<br>– متن به سم ولوستلای او وليکلای شي.<br>– د نوی لوست د جملو املا به وليکلای شي.<br>– د حضرت محمدﷺ د لوړ شخصيت په هکله به خپل معلومات نورو ته وړاندې کړای شي. |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ځانګړي او د ډله ييز فعاليتونه |
| د تدريس وسيلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، قلم، کتابچه او نور |
| ارزونه | شفاهي ارزونه، عملي کار، د لوستلو، ليکلو او ډله ييز کار څارل او پايلې په کتابچه کې ليکل. |
| د زده‌کړې او تدريس (فعاليتونه) | سلام، احوال، روغبړ کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورنۍ دندې کتنه او د نوی لوست پيداکول. |
| | انګيزوې پوښتنې:<br>– ښاغلی ښوونکی دې د تېر لوست د ارزونې لپاره له زده کوونکو څخه بيلابېلې پوښتنې وکړي او نوی لوست دې په لاندې پوښتنو پيل کړي.<br>– تاسو د حضرت محمدﷺ د لوړ شخصيت په اړه څه ويلای شئ؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د نوی لوست جملې له ځان سره په چوپتیا ولولي.

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب غږ ولولي.

– ښوونکی دې د نوی لوست معنا او مفهوم په ساده ژبه زده کوونکو ته تشریح کړي.

– ښوونکی دې د حضرت محمدﷺ د لوړ شخصیت او نیکو اخلاقو په اړه زده کوونکو ته لنډ معلومات وړاندې کړي.

– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې څو تنه په خپل وار سره متن ولولي او بیا د لوست په مفهوم خبرې وکړي.

– ښوونکی دې زده کوونکو ته د متن جملې د املا په توګه ووایي او د هغوی تېروتنې دې ورته اصلاح کړي.

– ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په متن کې درې توریزې او څلور توریزې کلمې پیدا او هغه په کتابچو کې ولیکي.

| | |
|---|---|
| ارزونه | – څوک نوی لوست سم او روان لوستلای شي؟<br>– څوک د حضرت محمدﷺ د لوړ شخصیت او نیکو اخلاقو په هکله خبرې کولای شي؟<br>– څوک لاندې لغتونه معنا او په جملو کې کارولای شي؟<br>غوره، معبود |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د متن یوه برخه په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## دریم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | پوهنه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د پوهنې په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– د پوهنې په ارزښت به پوه شي.<br>– متن به سم او روان ولولي او وبه یې لیکي.<br>– د نوی لوست د جملو املا به ولیکلای شي.<br>– د نوی لوست په ارزښت به پوه او په ورځني ژوند کې به یې عملي کړي. |
| د تدریس لارې | – لوستل، لیکل، پوښتنې، ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یوکسیز فعالیتونه. |
| د تدریس وسیلې | – درسي کتاب، توره تخته، تباشیر، تخته پاک، قلم، کتابچه او داسې نور... |
| د زده‌کړې او تدریس (فعالیتونه) | – لومړني فعالیتونه: زده‌کوونکو ته سلام اچول، ستړي مه شي ویل، د حال احوال پوښتنه، حاضرۍ اخیستل د ټولګي تنظیمول، د کورنۍ دندې کتنه، له تېر لوست سره په اړیکه کې پر نوی لوست پیل. |
| | د انګیزې رامنځ ته کول:<br>– ښاغلی ښوونکی دې د تېر لوست د ارزونې لپاره له زده‌کوونکو څخه بېلابېلې پوښتنې وکړي.<br>– ستاسو په فکر مورِ ولې لوست وایو؟ او دا موضوع له پوهنې سره څه اړیکې لري؟ مورِ څنګه کولای شو چې د پوهې خاوندان شو؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د نوی لوست د دریم مخ یوه برخه له ځان سره په چوپتیا ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ اومناسب غږ ولولي.
– ښوونکی دې دنوی لوست معنا اومفهوم په ساده ژبه زده‌کوونکو ته تشریح کړي اوله دوی څخه دې هم په دې اړه څو پوښتنې وکړي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته دوه جملې د املا په توګه ووایي او بیا دې یو تن هغه په تختې ولیکي او نور دې د هغه له مخې اصلاح کړي.
– ښوونکی دې له زده‌کوونکوڅخه په وار سره وغواړي چې د متن مطلب په ساده ژبه بیان کړي.
– ښوونکی دې متن ولولي او بیا دې په وار سره په څو زده‌کوونکو تکرار کړي. په پای کې دې د متن په معنا او مفهوم خبرې وکړي او له دوی څخه دې هم په دې اړه وپوښتي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو وویشي او له هرې ډلې څخه دې وغواړي چې د پوهنې په هکله یوه یوه مقاله ولیکي په پای کې دې له هرې ډلې څخه یو تن خپله مقاله ولولي. وروسته دې ښوونکی ښه کارکوونکې ګروپ نورو ته وښیي او ودې ستایي.

| ارزونه | – څوک نوی لوست لوستلای او په دې اړه معلومات ورکولای شي؟<br>– څوک د پوهنې د زده‌کړې په اهمیت وپوهیدل؟<br>– څوک د متن په مطلب په لنډه توګه خبرې کولای شي؟<br>– څوک د لوست لغتونه معنا او په جملو کې کارولای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې پوهه څنګه حاصله کړو تر څو له نا پوهۍ څخه ځان وژغورو؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | د ځمکې پر مخ لومړنیو انسانانو کله چې ټولنیز ژوند منځ ته راوړ تر هغه مخکې یې بدوي ژوند درلود، علم هم ابتدایي بڼه درلوده. وروسته په مصر، بابل، کلدې، بیت المقدس، مدینې، آتن، اوروم کې عالمان پیدا شول او علم ورو ورو ترقي وکړه. پوهنه په لغت کې د علم په معنا ده. د عالمانو د نظریو، څرګندونو محصول او ثمره بلل کیږي. پوهنه د ټولنیز انساني ژوند ډیوه ده، بې علمي انسان جهالت، ناپوهۍ او بربادۍ ته رسوي. علم انسانان په طبیعت کې واکمنوی او د ژوند ناخوالو ته یې د حل لارې برابروي، او ټولنې ته پرمختګ، هوسایي او سوکالي ور بښي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د نوی لوستل شوی برخې اصل مطلب په لنډوجملوکې ولیکي. |

## څلورم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | څان پیژندنه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br><br>– د ځان پیژندنې په معنا او مطلب به وپوهیږي.<br>– زده‌کوونکي به په دې وپوهیږي چې خپلو خلکو او ټولنې ته مسوولیتونه لري.<br>– د متن سم لوستل او لیکل به وکړای شي.<br>– د نوی لوست ځینې جملې به د املا په ډول ولیکلای شي.<br>– د ځان پیژندنې په اهمیت به پوه شي او کوښښ به وکړي چې خپل ځان ښه وپیژني.<br>– د ځان پیژندنې مطلب او ارزښت به نورو ته بیان کړای شي. |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوکسیز او ډله ییز فعالیتونه. |
| د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، قلم او کتابچه او داسې نور... |
| ارزونه | شفاهي ارزونه، عملي کار، پوښتنې او د نورو صنفي کارونو څارل. |
| د زده‌کړې او تدریس (فعالیتونه) | لومړني فعالیتونه: سلام اچول، د حال اواحوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل. |
| | انگیزوي پوښتنې:<br>– تاسو په دې مطلب پوهیږئ چې ځان پیژندنه څه معنا لري؟<br>– د یوه پوه او اغیزمن ځوان په صفت د ژوند په ډگر کې څه باید وکړو؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست په چوپتیا ولولي.
- ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز د ټولګي په مخکې ولولي.
- ښوونکی دې د نوی لوست معنا او مفهوم زده‌کوونکو ته په ساده ژبه تشریح او توضیح کړي.
- ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په دوه کسیزه توګه د لوستل شوي متن په اړه له یو بل څخه پوښتنې وکړي.
- ښوونکی دې په متن کې متضادو کلمو ته اشاره وکړي او له څو زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې یو زده‌کوونکی لغتونه اوبل یې متضاد شکل د تختې پرمخ ولیکي.

| | |
|---|---|
| ارزونه | - څوک د ځان پيژندنې د لوست جملې له تېروتنې پرته لوستلای شي؟<br>- څوک د لوست جملې د املا په ډول د تختې پر مخ ليکلای شي؟<br>- څوک د نوی لوست په معنا او مفهوم خبرې کولای شي؟<br>- څوک ویلای شي چې د الفت له خبرو څخه مو د خپل ژوند لپاره څه نتیجه واخیسته؟<br>- ځان پيژندنه انسانانو لپاره په ژوند کې څه ګټه لري؟ |
| اضافي معلومات | گل پاچا الفت د سید پاچا زوی چې په ۱۲۸۷ کال کې د لغمان د عزیز خان په کڅ کې زېږېدلی و او په ۱۳۵٦ کال کې همغلته مړ او پلرنۍ ولسي هدېرې کې خاورو ته سپارل شوی دې. ده لومړنۍ زده‌کړې له ديني عالمانو او د خپل عالم پلار څخه حاصل زده‌کړې وې. اروا ښاد الفت د پښتو ژبې مشهور او منلی شاعر و. غوره شعرونه، غوره نثرونه، لوړ خیالونه او ژور فکرونه، املا انشاء د الفت مرغلرې يې له چاپي اثارو څخه دي. د الفت آثار هر افغان زلمی او پېغله دې ته رابولي چې خپل ځان وپېژني، ځکه د ځان پيژندنه د جهان پيژندنه ده. څوک چې خپل ځان نه پيژني هغه جهان او الله پاک نه شي پيژندلای. کله چې هر انسان خپل ځان وپيژندلو هغه کولای شي چې د خپل هېواد، خپلو خلکو، او د بشریت په وړاندې خپل انساني او اسلامي دېن او مسوولیت سر ته ورسوي. د الفت منظور دادی چې د ژوند کاروان پرمخ روان دی. د کوچنیوالي لوبې باید سرې کوچنیوته پرېږدي. ځوانان باید زده‌کړه او کار وکړي. مشران باید ځوانانو ته لازمې لارښوونې وکړي. تر څو هر انسان خپل انساني، ایماني او اسلامي وجیبه په ښه توګه ترسره کړي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي خپلو خلکو ته څه مسوولیتو نه لري؟ تر دې عنوان لاندې یوه لنډه مقاله ولیکي |

## پنځم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | غرونه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د متن اصلي مطلب به درک کړي.<br>– د بنستيزو توکو په حيث به غرونه وپيژني.<br>– په دې به وپوهيږي چې يوه ژبه څنگه له غرونو څخه جوړه شوې ده.<br>– په لوستلو او ويلو کې به د غرونو سم ادا کول زده‌کړي.<br>– د نوی لوست متن به په روانه توگه ولولي اوپه معنا به يې وپوهيږي.<br>– د نوی لوست په لوستلو به ډاډمن شي چې غرونه په هره ژبه کې ځانگړی ارزښت لري. |
| انگيزوي پوښتنه: | – ستاسو په نظر په يوې ژبې کې غرونه څه ارزښت لري؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست په چوپتيا سره ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو د ټولگي په مخ کې په لوړ آواز ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست توضيح اوتشريح کړي معنا او مفهوم دې زده‌کوونکو ته په ساده ژبه ووايي.
– ښوونکی دې دوه دوه تنه وگماري چې يو بل ته املا ووايي اويو دبل املا اصلاح کړي.
– ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي، د معنا او مفهوم په هکله دې پوره توضيحات ورکړي.

| ارزونه | – څوک ويلای شي چې د يوې ژبې بنستيز توکي کومو شيانو ته ويلای شو؟<br>– څوک کولای شي د تورو په بدلون سره ځينې کلمې وليکي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | کله چې وغواړو خپل مطلب نوروته ورسوو اړيو چې د کلمو او جملو په واسطه افهام او تفهيم وکړو. کلمې چې په ويناوو کې لويه برخه لري له وړو توکونو (غرونو) څخه جوړې شوې دي. غرونه په يوازې توگه هيڅ معنا نه لري خو د ژبنيو اصولو او قاعدو له مخې د هغو له يو ځای کېدو څخه معنا داره واحدونه (کلمې) منځ ته راځي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې په خپلوکتابچو کې پنځه پنځه داسې کلمې وليکي چې د يوه غږ په بدلون سره ورڅخه نورې معنا لرونکې کلمې جوړې شي. |

**شپږم لوست**

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **اریایان** |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ آریآیان به وپیژني.<br>ـ د آریآیانو د ټاټوبي، ژبې او ژوند په هکله به وپوهیږي.<br>ـ د متن سم لوستل او لیکل به وکړای شي.<br>– د نوی لوست ځینې جملې به د املا په ډول ولیکلای شي.<br>– د نوی لوست په پوهیدو سره به د آریایانو د مدنیت په هکله معلومات ترلاسه کړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ایا تاسو د آریایانو کلمه او یا دهغو په هکله کومه کېسه اورېدلې ده؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست له ځان سره په پټه خوله ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز زده‌کوونکو ته ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو باندې په وار سره په لوړ غږ د ټولګي په مخ کې ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست زده‌کوونکو ته تشریح کړي.
– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې دوه دوه زده‌کوونکي یو بل ته املا ووایې
– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن له ځان سره ولولي، دهغه په معنا او مفهوم دې هم فکر وکړي.

| ارزونه | – څوک ویلای شي چې آریایان څوک دي؟<br>– د آریایانو لومړۍ ژبه څه نومېده؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | د بشر تول تیر تاریخ د جګړو، ناتارونو او طبیعي پیښو، افتونو له امله ګونګ او د ډیرو واقعیتونو په اړوند ډیر وړاندېزونه په اټکل او ګومان تکېه لری. د ځینو استادو او شواهدو له مخې دا څرګنده شوې چې له پنځو یا شپږ زرو کلونو پخوا آریآیان د افغانستان په شمال آمو دریا او د پامیر په لوړو سیمو کې اوسیدل. د انساني ژوند پنځه زره یا زیادو کلونو د تاریخ تت او سپیره مخ دا جوتوي چې اریآیان دافغانستان په شمال کې اوسیدل. د آریآیانو لومړی پاچا یما بلل شوی دی. د یما پاچا د لور نوم آریا و، یما د خپلې لور نوم له خپل ټاټوبي آریانا څخه اقتباس کړی و، د آریآیانو ژبه اریبک وه د آریآیانو لومړنی ټاټوبی اریانا ویجه نومېده. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. (ام البلاد، آرییک، آریانا ویجه،یما پاچا) |

## اووم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **کتاب** |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– زده‌کوونکي به د کتاب په ارزښت وپوهيږي.<br>– په دې به وپوهيږي چې کتاب څنګه منځته راغلی دی؟<br>– نوی لوست به له تېر وتنو پرته ولوستلای شي.<br>– د لوست په معنا او مفهوم به وپوهيږي<br>– د نوی لوست محتوا به نورو ته بيان کړای شي .<br>– د کتاب د منځته راتلو بهير به په خپله ژبه وويلای او وليکلای شي.<br>– د کتاب په ارزښت به پوه او په ساتنه کې به يې پاملرنه وکړي. |
| انګيزوي پوښتنې: | – تا سو څه فکر کوئ چې په پخوا زمانو کې هم کتاب موجود و؟<br>– په پخوا زمانو کې له کاغذ څخه پرته په نورو کوموشيانو باندې ليکل شوي وو؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي د هغه توضيح او تشريح دې په ساده ژبه ترسره کړي.
– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو په وارسره په لوړ آواز تکرار کړي.
– ښوونکی دې هر زده‌کوونکي ته يوه يوه جمله د املا په توګه ووايي.
– ښوونکی دې د لوست په بېلابېلو برخو کې له زده‌کوونکو څخه لنډې پوښتنې وکړي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي وهڅوي ترڅو په خپلو ډلو کې د پاپيروس د پاڼو، د چاپ د ماشين او د ژوو د پوستکو څخه د کاغذ په ځای دکار اخيستنې په اړه بحث وکړي، وروسته دې خپل نظرونه د کاغذ پر مخ وليکي او بيا دې د ګروپ په استازيتوب يويوتن د ټولګي مخې ته راشي او هغه دې ولولي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي وهڅوي چې دوه دوه تنه يوبل ته نوی لوست تکرار کړي.

| ارزونه | – څوک نوی لوست په ښه توګه لوستلای شي؟<br>– څوک د نوی لوست په معنا او مفهوم خبرې کولای شي؟<br>– څوک کولای شي چې څو لغتونه په تختې وليکي او بيا يې معنا کړي؟<br>– څوک ويلای شي چې کتاب به اوسني وخت کې زموږ د ټولني په پرمختګ کې څه رول لري؟ |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط وليکي. |
| اضافي معلومات | په معاصره بڼه کتاب (چاپي) ډېر لنډ تاريخي عمر لري، خو قلمي (ليکلي) کتابونه تر ۳۵۰۰ ــ ۵۰۰۰ کلونو پورې د مخه زمانه کې ليکل شوي دي. (په ډبرو، لرګيو، دختو په لوښو، د څارويو په پوستکو او لومړنيو کاغذونو) د بشر په تاريخ کې لومړني ليکلي کتابونه د لرغونو مصريانو کتابونه دي. کتاب د مبتکرو او خلاقو انسانانو د تخليق، تفکر او د ژوند د تجربو غونډه ته ويل کېږي. د کتاب ليکل او چاپول سخت او د روند کار دی. د کتاب په وسيله علم او پوهه له يوه نسل څخه راتلونکو نسلونو ته ليږدول کيږي. کتاب د علم او پوهې سرچينه بللای شو. د کتاب ښه ساتل هم انسان ته لازمي او ضروري کار دې. |

## اتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **حضرت علیرضي الله عنه** |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– حضرت عليرضي الله عنه به وپیژني.<br>– متن به سم او روان ولولي او وبه يې ليکلای شي.<br>– د حضرت عليرضي الله عنه د پېژندنې په اساس به د ده د اخلاقو پیروي وکړي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ستاسو په فکر لومړنی ماشوم چې د اسلام په دين مشرف شوی څه نوميده؟<br>– آيا تاسو د حضرت عليرضي الله عنه په اړه څه ويلای شئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست په چوپتیا له ځان سره ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب غږ زده‌کوونکو ته ولولي.
– ښوونکی دې نوی لوست په وار سره د ټولګې په مخ کې په زده‌کوونکوتکرار کړي.
– ښوونکی دې نوی لوست زده‌کوونکو ته توضیح او تشریح کړي او نوی لغتونه دې له معناوو سره د تختې پرمخ وليکي.
– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې دوه دوه تنه له یو بل څخه د نوی لوست په اړه پوښتنې وکړي، او یو بل ته ځواب ووايي.

| ارزونه | – څوک کولای شي چې د لوستل شوي متن مطلب په خپله ژبه ووايي؟<br>– څوک کولای شي چې د متن لغتونو ته مناسبې جملې جوړې او پر تختې يې وليکي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | حضرت عليرضي الله عنه د اللهجل جلاله زمری (اسدالله) هم ويل کېږي. د ابوطالب زوی دی. د اسلام د پیغمبر حضرت محمدصلی الله علیه وسلم د کا کا زوی، زوم او څلورم یار دی. د اسلام په تاریخ کې دویم مسلمان او لومړنی ماشوم و چې په اسلام مشرف شوی دی. د اسلام څلورم خلیفه و. ډېر زړور سړی و. د امام حسین او امام حسن پلار و، ٦٣ کاله يې ژوند کړی دی. د حضرت عليرضي الله عنه د قبر په هکله دقیق معلومات نشته خو ځینې خلک دده قبر په عراق (بغداد) ځینې په نجف، او ځینې نور کسان يې په مدينې او يوه ډله يې هم د افغانستان په مزار شريف کې بولي.حضرت بي بي فاطمه (رض) يې مېرمن وه. حضرت عليرضي الله عنه د اسلام له ستر پیغمبرصلی الله علیه وسلم سره یو ځای لوی شوی و. په کومه ورځ چې د حضرت محمدصلی الله علیه وسلم له بي بي عايشې سره نکاح کړې په همغې مبارکې ورځې حضرت عليرضي الله عنه هم له بي بي فاطمې سره واده کړی و. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د حضرت عليرضي الله عنه په اړه څو جملې وليکي. |

## نهم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | کلمه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د کلمې په معنا اومفهوم به وپوهیږي او د کلمو ډولونه به وپیژني.<br>– په لیکلو او لوستلو کې به د کلمو سم کارول زده‌کړي.<br>– په ژبه کې به د کلمو په ارزښت وپوهېږي او هره کلمه به په مناسب ځای کې وکارولای شي |
| انګیزوي پوښتنې: | – آیا تاسو پوهېږئ چې کلمه څه معنا لري؟<br>– ستاسو په فکر مورې په خپلو خبرو اترو کې له کلمو څخه کار اخلو؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او د هغه په هکله دې بشپړ توضیحات ورکړي.
– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو باندې په وارسره د ټولګي په مخکې تکرار کړي. ښوونکی دې په تختې د نوی لوست د نوو لغتونو معنا هم ولیکي.
– ښوونکی دې متن په وار سره په زده‌کوونکو ولولي، د هغه د معنا او مفهوم په برخه کې دې هم له دوی څخه وپوښتي.
– دوه دوه تنه زده‌کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د متن جملې دې یو بل ته املا ووایي.

| ارزونه | – څوک کلمه تعریف او په اړوند یې معلومات ورکولای شي؟<br>– څوک نوی لوست سم لوستلای او لیکلای شي؟<br>– څوک د کلمې په معنا او مفهوم باندې وپوهېدل؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | په تشریحي ژبپوهنه کې ګرامر یوه ډېره مهمه برخه ده چې په هغې کې د یوې ژبې د کلمو او جملو رغاونه او جوړښت مطالعه او تشریح کېږي. همدارنګه د کلمو او جملو تر څنګه عبارتونه هم د جملو په جوړښت کې د مهمو توکو په توګه راتلای شي. یعنې په دې توګه ویلای شو چې یوه ژبه له کلمو، عبارتونو، جملو او نورو واحدونو څخه منځته راځي. د همدې و احدونو له ترتیب اوترکیب څخه کلمې جوړېږي چې دا ټول په ګډه سره د یوې ژبې جوړښت جوړوي او ټول دغه جوړښتونه د ژبې د ځانګړو قوانینو په اساس جوړېږي. د ژبې اساسي توکي یا کلمې د خپلې جوړونې، تر کیب، معنا او مفهوم او نورو وجهو له مخې ډېر ډولونه لري. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې پنځه خپلواکې کلمې په جملو کې راوړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي. |

## لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

<table>
<tr><td>اسم (نوم)</td><td>د لوست موضوع</td></tr>
<tr><td>زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د نوم په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– په متن کې به نومونه وپیژني.<br>– په لیکلو او لوستلو کې به نومونه په سمه توګه وکاروي.<br>په متن کې به نومونه په نښه او له نورو کلمو سره به یې توپیر وکړای شي.</td><td>د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي</td></tr>
<tr><td>– تاسو د نومونو په هکله څه اورېدلي دي؟<br>– زموږ په خبرو اترو کې به هم له نومونو څخه کار اخیستل شوی وي؟</td><td>انګیزوي پوښتنې:</td></tr>
<tr><td colspan="2">د ښوونکي فعالیتونه<br>– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست له ځان سره په چوپتیا ولولي او خپله دې ورته لغتونه د تختې پرمخ ولیکي.<br>– ښوونکی دې نوی لوست په مناسب غږ ولولي او بیا دې تشریح کړي.<br>– ښوونکی دې لوست په ټولو زده‌کوونکو په وار سره په لوړ او مناسب آواز د ټولګي په مخکې ولولي او د نیمګړتیا په صورت کې دې پوره مرسته وکړي.<br>– ښوونکی دې په دوه دوه زده‌کوونکو دنوی لوست جملې د املا په توګه د تختې پر مخ ولیکي.<br>– ښوونکی دې څو جملې د تختې پر مخ ولیکي او بیا دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوموړې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او نوم دې په کې په نښه کړي. بیا دې یو تکړه زده‌کوونکي خپلې جملې د تختې پرمخ ولیکي او نور زده‌کوونکي دې د تختې له مخې اصلاح کړي.<br>– ښوونکی دې یو ځلې بیا لوست ولولي او وروسته دې د نوم د ټولو ډولونو په هکله زده‌کوونکو ته پوره معلومات ورکړي.<br>– ښوونکی دې د لوست له تشریح څخه وروسته څو زده‌کوونکي وهڅوي چې د لوست متن په وار سره یوه، یوه کرښه ولولي.</td></tr>
<tr><td>– څوک کولای شي د نومونو درې بېلګې د تختې پرمخ ولیکي؟<br>– څوک لوست په سمه او روانه توګه لوستلای شي؟<br>– څوک د لوست مفهوم بیانولای شي؟</td><td>ارزونه</td></tr>
<tr><td></td><td>اضافي معلومات</td></tr>
<tr><td>زده‌کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.</td><td>کورنۍ دنده</td></tr>
</table>

## يوولسم لوست

## د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت:** د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | امير کروړ |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>● پوهنيزې<br>● مهارتي<br>● ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د لومړني شاعر او غښتلي پهلوان په توگه به امير کروړ(جهان پهلون) وپېژني.<br>– د نوی لوست متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د ملي، تاريخي شخصيتونو د درناوي روحيه به په دوی کې پياوړې او په ارزښت به يې وپوهېږي. |
| انگيزوي پوښتنې: | – څه فکر کوئ په پښتو ژبه کې لومړنی شاعر څوک و؟<br>– ستاسو په فکر د پښتو د شعر او شاعرۍ پيل به له کوم وخت او د چا په واسطه شوی وي؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو په چوپتيا سره ولولي.
- ښوونکی دې لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي اوله زده‌کوونکو دې وغواړي چې لوست په وار سره دټولگی په مخ کې تکرار کړي او ښوونکی دې نوی لغتونه له معناوو سره په تختې وليکي بيا دې نوی لوست زده‌کوونکو ته تشريح کړي.
- ښوونکی دې زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپل منځ کې دوه دوه تنه له يو بل څخه د درس په اړوند پوښتنې وکړي.
- ښوونکی دې بيا په خپله خوښه په څو تنو زده‌کوونکو باندې نو ی لوست په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې دوه زده‌کوونکې تختې ته راوغواړي يو زده‌کوونکی دې دويم زده‌کوونکي ته يوه کرښه املا ووايي او ښوونکی دې په يو بل زده‌کوونکي باندې د املا تيروتنې اصلاح کړي.
- ښوونکی دې دټول لوست مطلب په خپله ژبه زده‌کوونکو ته ووايي او هغوی دې په هره برخه ښه و پوهوي.

| ارزونه | – څوک د نوی لوست په معنا او مفهوم خبرې کولای شي؟<br>– څوک د نوی لوست متن سم لوستلای او ليکلای شي؟<br>– څوک د نوی لوست دوه يا درې جملې د املا په دول ليکلای شي؟<br>– څوک کولای شي چې د پښتو ژبې د لومړني شاعر په هکله خبرې وکړي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | زموږ د هېواد د اسلامي تاريخ له پيل څخه تراوسه پورې داسې راغلي دي چې اميرکروړ د اميرفولاد سوري زوی هغه لومړنی پښتون او امير دې چې د پښتو ژبې د شاعرۍ پيلگر او داسې جنگيالی ملي اتل و چې له سلو جنگياليو سره جنگېده. په هر صورت بايد موږ دا ومنو چې امير کروړ هغه افغان (پښتون) اسلامي امير و چې د عباسيانو د کورنۍ پلوی و.د خپلې زمانې اتل او زبور شاعر و. د کروړ له بوللې څخه تراوسه پورې د پښتو ژبې په شاعرۍ کې داسې بل شعر او منظومه نه ده ترلاسه شوې، ځکه يې د هومر په شان د پښتو ژبې لومړنی شاعر هم بللای شو، خو نه لومړنی شاعر دی او نه د کروړ دا لومړنی شعر دی. موږ پوهېږو چې د هېڅا لومړنی شعر دومره موزون، معقول، قوي او پوخ نه وي. نو ويلای شو چې د پښتو ژبې شعر او شاعري به له امير کروړ څخه ډېره پخوا هم موجوده وه. خو له بده مرغه اشعار او آثار يې د جگړو او لمبو په ناتارونو کې له منځه تللي دي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د لوست لنډ مطلب په خپلو کتابچو کې وليکي. |

# دولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | متلونه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده‌کوونکي به وپوهیږي چې متل څه ته وایي.<br>– په خبرو او ویناوو کې به د متلونو په ارزښت وپوهیږي.<br>– متلونه به سم ولوستلای شي او د هر متل په معنا او مطلب به پوه شي. |
| انګیزوي پوښتنې: | – تاسو متلونه اورېدلي او د هغو په مطلب باندې پوهېږئ؟<br>– څوک کولای شي چې یو متل ووایي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو باندې په وار سره ولولي<br>– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او بیا دې د نوی لوست متلونه توضیح او تشریح کړي.<br>– ښوونکی دې نوی لغتونه له معناوو سره پر تختې ولیکي<br>– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې متن په چوپتیا سره ولولي او خپلو ستونزو ته دې پاملرنه وکړي<br>– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې دوه دوه تنه یو بل ته املا ووایي، بیا دې په پای کې د یو بل په مشورې هغه اصلاح کړي.<br>– ښوونکی دې د څارلو په وخت کې له دوی سره مرسته او ورته پوره لارښوونه وکړي. | |
| ارزونه | – څوک د متلونو مفهوم په لنډه توګه ویلای شي؟<br>– څوک د نوی لوست درې متلونه د املا په توګه لیکلای شي؟<br>– څوک د متلونو متن سم لوستلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې متلونه څه ته وایي؟ |
| اضافي معلومات | متلونه هغه پوره معنا لرونکې جملې او له پند څخه ډکې لارښوونې دي چې د هر ولس او ملت څخه د سلګونو او زرګونو کلونو په اوږدو کې نسل په نسل او خوله په خوله اوسنیو نسلونو ته رارسېدلي او راتلونکو نسلونو ته به انتقالیږي. متلونه د بحثونو او نظرونو د غوځونې او پرېکاوي لپاره په غونډو، جرګو او مرکو کې د خلکو له خوا کارول کېږي. متل د وګړو او پرګنو د ژوند د عملي تجربو ثمر او محصول دی. متلونه په پښتو ژبې کې هم لکه د بلې هرې ژبې په شان ډېر زیات په خبرو اترو او لیکلو کې کارول کېږي. اکثره متلونه سجع او وزن لرونکي دي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې څو داسې متلونه په خپلو کتابچو کې ولیکي چې په کتاب کې نه وي راغلي. |

## دیارلسم لوست

## د تدریس لاربښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | پټه خزانه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– پخواني مشهور کتابونه او د هغو ليکوالان به وپيژني.<br>– د پخوانيو اثارو په ارزښت به وپوهيږي.<br>– د پټې خزانې په پيژندلو سره به په پښتو ادب کې د ښو اثارو په درلودو باوري شي.<br>– د متن په لوستلو به د نوو کلمو او عبارتونو سره بلد تيا پيدا کړي. |
| انگيزوي پوښتنې: | – آيا تاسې د پټې خزانې نوم اورېدلی دی؟<br>– ستاسو په فکر پټه خزانه څه ډول کتاب دی؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په روانه توگه او مناسب آواز ولولي او بيا دې لوست په زده‌کوونکو باندې په وارسره تکرار کړي او د لوست معنا او مفهوم دې زده‌کوونکو ته په ساده ژبه بيان کړي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په گروپونو ووېشي، د کلمو ليکلي کارتونه دې ورکړي، ترڅو هر گروپ په مشورې سره کلمو ته مناسبې جملې جوړې کړي، د هر گروپ استازی دې د خپل گروپ جملې په تختې وليکي او ښوونکی دې د هغو تېروتنې اصلاح کړي.

– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي وگماري چې يو له بل څخه پوښتنې وکړي او مقابل لوری دې ورته ځواب ورکړي.

| ارزونه | – څوک کولای شي د متن جملې سمې او روانې ولولي؟<br>– څوک د پټې خزانې د ليکوال محمد هوتک د ژوند په اړوند لنډ معلومات ورکولای شي؟<br>– ستاسو په فکر محمد هوتک پښتو ژبې ته څه خدمت کړی دی؟<br>– آيا ويلای شئ چې د پټې خزانې کتاب څه ارزښت لري؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | پښتو ژبه اوږودکړلېچن ادبي تاريخ لري. په دې ژبې کې گڼ شمېر شاعرانو او ليکوالونو کتابونه ليکلي دي چې سر لاری يې امير کروړ او ابو محمد هاشم بن زيد سرواني البستي( سالو وږمه)، محمد ابن علی البستي (تاريخ سوري)، سليمان ماکو (تذکره الاوليا)، پيرروښان (خيرالبيان)، صراط التوحيد....)، اخوند درويزه (مخزن الاسلام)، خوشحال خان ختک (د شعرونو کليات، دستار نامه....)، افضل خان ختک (تاريخ مرصع)، عبدالقادر خان ختک (گلدسته)، گوهر خان ختک (قلب السير)، د حميد ماشوخېل (در و مرجان)، رحمان بابا (د شعرونو ديوان)، بللی شو. په همدې لړ کې د پټې خزانې ليکوال محمد هوتک نوم هم د يادولو وړ دې چې پټه خزانه يې د شاه حسين هوتکي په زمانه کې په ۱۱۴۱ هجري قمري کال کې د پنځوسو تنو نرينه او ښځينه شاعرانو د ژوند ليک په څېر( تذکره) ليکلې ده. محمد هوتک په ۱۰۸۴ هجري قمري کال د کندهار په کوکران کې زېږېدلی دې. نوموړی د داود خان زوی و. د محمد هوتک د مړينې نېټه نه ده معلومه. دده نور کتابونه دا دي: خلاصة الفصاحه، خلاصة الطب او د شعرونو يو ښکلی ديوان. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د نوی لوست څلور نوی لغتونه په جملو کې استعمال کړي. |

## څوارلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **مطالعه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– په مطالعې او د هغې په ارزښت به وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به عملاً مطالعې ته وهڅول شي.<br>– د مطالعې په اهمیت به پوه او د مطالعې کولو روحیه به پکې پیاوړې شي. |
| انګیزوي پوښتنې: | – څه فکر کوئ چې مطالعه څه ګټې لري؟<br>– مورږ ولې باید مطالعه وکړو؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز زده کوونکو ته ولولي. د نوو لغتونو معنا دې په تختې ولیکي.
بیا دې څو تنو زده کوونکو ته دنده وسپاري چې نوی لوست په سم تلفظ د ټولګي په مخ کې په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې یو ځل بیا نوی لوست ولولي او په معنا او مفهوم دې خبرې وکړي.
- ښوونکی دې دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي یوه زده کوونکي ته دې څو جملې د کتاب له مخې د املا په توګه ووایي. د غلطۍ په صورت کې دې دویم زده کوونکی هغه اصلاح کړي.
- ښوونکی دې په متن کې سره ورته او متضادې کلمې وښیي او زده کوونکي دې هغه ولیکي.
- ښوونکی دې د مطالعې په ګټو، ارزښت او اهمیت باندې زده کوونکو ته په ساده ژبه تشریحات ورکړي.

| ارزونه | – څوک کولای شي د متن جملې رواني ولولي او ویې لیکي؟<br>– څوک د متن مفهوم په روانه توګه بیانولای شي؟<br>– څوک د نوی لوست درې جملې د املا په توګه لیکلای شي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | په قران کریم کې راغلي دي. آیا برابر دي هغه کسان چې پوهه (علم) لري له هغو سره چې علم نه لري. ښکاره خبره ده چې جاهل( ناپوه) له عالم سره په هېڅ وجهه برابر نه دی. علم او پوهه د مطالعې په پایله کې لاس ته راځي. انسان( نر ـــ ښځه) هغه وخت پوهېږي او عالم ورڅخه جوړېږي چې کتابونه ولولي.<br>مطالعه: د کتابونو، ورځپاڼو، جریدو، مجلو، رسالو، او نورو د لیکنو او لوستلو څخه عبارت ده. د مطالعې له برکته د انسان د پوهې کچه لوړېږي. انسان باید له ګهوارې څخه تر ګوره پورې زده کړه وکړي، نو ځکه د عمر په هرې دورې او مهال (سن او سال) کې مطالعه اړینه ګڼوره او کړنه ده. |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې پنځه نوی لغتونه (د لوست) په جملو کې وکاروي. |

## پنځلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | مور افغانان یو |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د لوست په مطلب او مفهوم به وپوهیږي.<br>– متن به په روانه توګه ولوستلای شي.<br>– د متن نوی لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>– د لوست په مطلب به خبرې وکړای شي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – آیا تاسو (مور افغانان یو) په مفهوم او ارزښت پوهیږئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- زده‌کوونکي دې متن ولولي او ښوونکی دې په لوستلو کې ورسره پوره مرسته وکړي.
- ښوونکی دې د لوست متن په لوړ آواز ولولي او لوست دې توضیح او تشریح کړي.
- ښوونکی دې څو زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، په یو تن دې د لوست نوی لغتونه د تختې پرمخ ولیکي او بل تن دې د لغتونو معنا ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي او ښوونکی دې د نیمګړتیا په صورت کې مرسته وکړي.
- ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په وارسره د افغان او افغانیت په هکله لنډ معلومات وړاندې کړي.
- ښوونکی دې دوه تنه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي ترڅو یو بل ته د لوست له مخې املا ووایي.

| ارزونه | – څوک کولای شي چې د لوست متن سم او روان ولولي؟<br>– څوک کولای شي چې د لوست په مطلب خبرې وکړي؟<br>– څوک به د تختې مخې ته راشي او د نوی لوست څو لغتونه معنا او بیا ورته جملې جوړې کړي؟ |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## شپاړسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | سوله او ژوند |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د سولې په ارزښت او اړتیا به وپوهیږي.<br>– متن به د کتاب له مخې سم ولولي او ځینې کلمې او جملې به یې د املا په توګه سمې ولیکي<br>– د سولې په ګټو او اړتیا به خبرې وکړای شي.<br>– له سوله ییز ژوند سره به مینه پیدا کوي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ستاسو په فکر ولې سولې ته اړتیا لرو؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

- ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي.
- ښوونکی دې د نوی لوست معنا او مفهوم په ساده ژبه بیان کړي او نوی لغتونه دې له معناووسره په تختې ولیکي.
- ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي او هرې ډلې ته دې د کلمو لیکلې کارتونه وسپاري تر څو کلمو ته جملې جوړې کړي، د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې جملې په تختې ولیکي او ښوونکی دې ورته اصلاح کړي.
- ښوونکی دې دوه دوه تنو زده‌کوونکو ته دنده ورکړي چې د نوی لوست جملې یو بل ته املا ووایي.
- له څو زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې د تختې مخې ته راشي او د سولې په اړه دې یوه یوه جمله ووایي.

| ارزونه | – څوک کولای شي چې د متن مطلب په خپله ژبه ووایي؟<br>– څوک کولای شي چې د متن یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.<br>– څوک کولای شي ووایي چې د سولې له متن څخه کومه برخه تاسو ته په زړه پورې او له هغو څخه پیروي کول ډېر ښه کار دی؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د سولې او ژوند په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# اوه لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | وزیر محمد اکبر خان |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>● پوهنیزې<br>● مهارتي<br>● ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د متن سم لوستل او لیکل به وکړای شي.<br>– وزیر محمد اکبر خان به وپیژني.<br>– د هېواد د غازیانو او اتلانو له تاریخ څخه به خبر شي.<br>– د وزیر محمد اکبر خان ښه او لوړ اخلاق به زده‌کوونکي وهڅوي او دا روحیه به یې پیاوړې شي چې دوی هم دا شان اخلاق په ځان کې وروزي. |
| انګېزوي پوښتنې: | – آیا تاسو له انګرېزانو سره د آزادۍ په جګړو کې د غازیانو او اتلا نو نومونه اورېدلي دي؟<br>– آیا تاسو د وزیر محمد اکبر خان نوم اورېدلی او هغه پېژنئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او بیا دې توضېح او تشرېح کړي، نوی لغتونه دې له معناووسره په تختې ولیکي.

– ښوونکی دې نوی لوست د ټولګي په مخ کې په څو زده‌کوونکو په وارسره ولولي.

– ښوونکی دې په متن کې راغلې نوې کلمې د کتاب له مخې په تختې ولیکي او زده‌کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې جملې ورته جوړې کړي.

امیر دوست محمدخان، مزار شریف، افغان، غازیان، ملامتیا، جګړه، هیواد

| ارزونه | – څوک د نوی لوست مطلب په لنډه توګه ویلای شي؟<br>– څوک کولای شي چې د وزیر محمد اکبر خان په هکله معلومات وړاندې کړي؟<br>– څوک د متن لغتونه په جملو کې کارولای او په تختې یې لیکلای شي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | زموږ د ګران او ویاړلی هېواد افغانستان ګڼ شمېر لوښې او زامن د اتلولۍ په روحیې روزل شوی او د قهرمانۍ تاجونه یې په سر ایښي دي. په دې جملې کې د وزیر محمد اکبر خان نوم د یادولو وړ دی. نوموړی ملي اتل په کابل کې د ملي غازیانو او افغاني مجاهدینو سره یو ځای د انګرېزي اشغالګرو د وسله والو ځواکونوپر ضد په مېړانه جنګېدلی. په کابل کې یې د برتانیې سفیر مکناټن د خپلې تفنګچې په مرمیو له پښو وغورځاوه. غازي وزیر محمد اکبر خان د نورو افغاني غازیانوپه ملتیا بې رحمه پرنګیان له کابل څخه وتلو ته اړ کړل. دی له مجاهدېنو سره اوږه په اوږه د کابل جلال آباد په لاره د انګرېزي یرغلګرو د وتلو پر مهال د هغوی پر ضد جنګېده. غازیانو ګڼ شمېر انګرېزان ووژل او یو شمېر یې اسیران ونیول. کله چې امیر دوست محمد خان پاچا شو، خپل زوی غازي وزیر محمد اکبر خان یې چې ۲۴ کلن زلمی و، د دربار وزیر وټاکه ٦ کاله وزیر و او په ۳۰ کلنۍ کې په مرموز ډول ووژل شو. نوموړی د مزار شریف په ښار کې خاورو ته وسپارل شو. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د وزیر محمد اکبر خان په هکله څلور جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## اتلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | لیک نښې |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د لوست متن به سم او روان ولوستلای شي<br>– د متن په معنا او مطلب به وپوهېږي<br>– په لوستلو او لیکلو کې به د لیک نښو د کارولوپه ارزښت وپوهېږي.<br>– خپلو لیکنو کې به د لیک نښو سمه او پر ځای کارونه په پام کې ونیسي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – آیا د لیک نښو په هکله څه ویلای شئ؟<br>– تاسو کله په لیکنو کې لیک نښو ته پاملرنه کړې ده؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | |
| | – ښوونکی دې متن په مناسب آواز ولولي اوبیا دې د لیک نښو په اړه لنډې څرګندونې وکړي.<br>– زده‌کوونکي دې متن ولولي او په مفهوم دې له یو بل سره خبرې وکړي.<br>– زده‌کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځوکې د لوست لغتونه په جملو کې وکاروي.<br>– زده‌کوونکي دې له خپل ذهن څخه څو جملې ولیکي او لیک نښې دې پکې وکاروي، د نیمګړتیا په صورت کې دې ښوونکی همکاري وکړي.<br>– زده‌کوونکي دې یو یو تن په وار سره د تختې مخې ته راشي او د لیک نښو په اړه دې توضېحات ورکړي |
| ارزونه | – څوک متن سم لوستلای شي؟<br>– څوک کولای شي چې لیک نښې په جملو کې وکاروي؟<br>– څوک د لیک نښو په اړه خبرې کولای شي؟ |
| اضافي معلومات | بې له تورو او حروفو څخه ځینې ټکي او نښې شته چې په لیکلو او لوستلو کې ډېر ارزښت لري او یوه کلمه یا یوه جمله له تېروتنو او ابهام څخه ژغوري. ددغو لیک نښو او ټکو په لیکلو سره لوستونکي پوهېږي چې په کوم ټکي یا علامې ودرېږي. کومه کلمه او جمله په بلې پورې وتړي. د تعجب، ندا، پوښتنې، خطاب او نورو کېفیاتو څرګندونه په همدغو نښو سره کېږي چې په لیکنو کې ډېر ارزښت او اهمیت لري. که په یوه علمي، ادبي، معلوماتي، تاریخي، فرهنګي، هنري او نورو لیکنو کې لیک نښې و نه کارول شي، څرګنده ده چې په لیکنه او لوستنه کې تېروتنې رامنځته کېږي، لوستونکي د متن په مفهوم نشي پوهېدلای، که په یوې لیکنه کې د لیک نښو مراعات ونه شي، نو زموږ لیکنه به د انشا او املا له پلوه سمه او بشپړه نه وي، دا ځکه چې د لیک نښو کارول د املا یوه برخه ده او لیکوال یې باید په لیکوالۍ کې په پام کې ونیسي. دا دی دلته یو شمېر لیک نښې د ښاغلي ښوونکي د لا زیاتې پاملرنې لپاره وړاندې کوو: سیمې کولن(؛) یا ځنډ ټکی: دا علامه له کامې (،) څخه زیاته وقفه راولي لکه په دې جمله کې: بې له زیار او زحمت څخه چې د کامیابۍ لومړی شرط دی، نېکمرغي لاس ته نه راځي. |

| | |
|---|---|
| | مېوې چې د سلامتیا لپاره ضروري توکي دي باید پاکې وخوړل شي.<br>لیندۍ( ): دا علامه او نښه د خاصو نومونو، د پام وړ شیانو او په منځ کې د ورکړل شوو جملو د ښودلو لپاره کارول کېږي لکه : زما د تره زوی ( ناصر) په شپږم ټولګي کې اول نمره دی.<br>دوه غبرګي لیندکې (( )) د دې علامې په منځ کې د یوه بل چا نظریه یا له یوه کتاب او علمي اثر څخه یوه جمله یا عبارت راوړل کېږي. لکه: حضرت محمدﷺ فرمایلي: ((که زه په دنیا کې د ځان لپاره کوم دوست غوره کول غواړم نو هغه به یوازې ابوبکر صدیقؓ وي)). |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په خپله خوښه څو کرښې ولیکي او لیک نښې دې پکې وښیي. |

## نولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | غوره ویناوې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د متن په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د متن په معنا مطلب او ارزښت به وپوهیږي.<br>– له غوره ویناوو څخه به د خپل ژوند د بریاوو لپاره د سرمشق په توگه گټه واخلي. |
| انگیزوي پوښتنې: | – تاسو کله د غوره ویناوو کلمه اوریدلې په معنا او مفهوم یې پوهیږئ؟<br>– تاسو د لویانو له خبرو او ویناوو څخه څه اوریدلي او ویلای یې شئ؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب غږ زده کوونکو ته ولولي او په مطلب دې ورته خبرې وکړي..<br>– نوی لوست دې په زده کوونکو په وارسره د ټولگي په مخ کې د کلمو په سم تلفظ او مناسب آواز تکرار کړي.<br>– د نوی لوست لغتونه دې له معناوو سره د تختې پر مخ ولیکي.<br>– دوه دوه تنه دې د تختې مخې ته راوغواړي چې یو بل ته د نوی لوست جملې د املا په ډول ووایي، او نور زده کوونکي دې ورته اصلاح کړي. | |
| ارزونه | – آیا تاسې د نوی لوست په لوستلو سره د غوره ویناوو په معنا پوه شوئ؟<br>– څوک د نوی لوست متن لوستلای شي؟<br>– څوک د نوی لوست جملې او لغتونه د املا په ډول د تختې پر مخ لیکلای شي؟<br>– څوک د لوست په ارزښت خبرې کولای شي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې لوستل شوی متن په خپلو کتابچو کې ولیکي |

## شلم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د وطن مینه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د وطن د مینې په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– متن به په روانه توګه ولوستلای شي.<br>– د متن په لوستلو به له خپل وطن سره مینه پیدا کړي.<br>– په دې روحیه به وروزل شي چې د وطن ساتنه یې ایماني دنده ده. |
| انګیزوي پوښتنه: | – آیا تاسې پوهیږئ چې مونږ هر یو د وطن په وړاندې څه مسوولیت لرو؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي او بیا دې په څو زده‌کوونکو باندې په وارسره تکرار کړي.
- ښوونکی دې د نوی لوست معنا او مفهوم په ساده ژبه تشریح کړي او نوی لغتونه دې له معناووسره په تختې ولیکي.
- ښوونکی دې له څو زده‌کوونکوڅخه د متن په اړه لنډې لنډې پوښتنې وکړي.
- ښوونکی دې دوه دوه تنه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي چې بیتونه یو بل ته املا ووایي او ښوونکی دې د نیمګړتیا په صورت کې مرسته وکړي.
- ښوونکی دې د زده کوونکو په واسطه په متن کې هم وزنه کلمې پیدا اود تختې پر مخ دې ولیکي.

| ارزونه | – څوک کولای شي چې د وطن دمینې په اړه خبرې وکړي؟<br>– څوک کولای شي متن سم او روان ولولي؟<br>– څوک کولای شي چې په متن کې هم وزنه کلمې پیدا او د تختې پر مخ یې ولیکي؟ |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي. |

## یوویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | طبیعي زېرمې |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>– زده‌کوونکي به د خپل هېواد طبیعي زېرمې وپېژني.<br>– د طبیعي زېرمو په ارزښت او ساتلو به وپوهېږي.<br>– متن به سم ولولي او به ویې لیکي.<br>– د نوی لوست په لوستلو به دا مهارت ترلاسه کړي چې طبیعي زېرمې له چور او چپاول څخه وساتي او د هېواد په ودانولو کې ترې ګټه واخلي |
| انګیزوي پوښتنې: | – ستاسو په فکر موږ په خپل هېواد کې طبیعي زېرمې لرو، هغه به څه شی وي؟<br>– آیا پوهېږئ چې زموږ د هېواد غرونه، ځنګلونه او سیندونه څه ارزښت لري؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې نوی لوست په وارسره د ټولګي په مخ کې تکرار کړي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي، او له هرې ډلې څخه دې وغواړي چې د نوو لغتونو لپاره جملې جوړې کړي، د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې جملې پر تختې ولیکي او ښوونکی دې د ښو جملو لیکونکی ګروپ وستایي.

– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، یو زده‌کوونکی دې د کتاب له مخې څو جملې ووایي او دویم زده‌کوونکی دې همغه جملې د املا په ډول د تختې پر مخ ولیکي.

– ښوونکی دې د افغانستان د طبیعي زېرمو په ګټو او ارزښت لنډې خبرې وکړي.

– ښوونکی دې د لوست له مخې هم معنا کلمې د تختې پرمخ ولیکي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې د کلمو مترادفه معنا پیدا او د کلمو ترځنګ یې ولیکي.

| ارزونه | – څوک د نوی لوست مفهوم په لنډه توګه ویلای شي؟<br>– څوک د نوی لوست یوه یوه جمله د املا په توګه لیکلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې د افغانستان د طبیعي زېرمو په وړاندې زموږ ځوانان او هېوادوال کومه وجداني دنده لري؟<br>– څوک ویلای شي چې د افغانستان د طبیعي زېرمو ساتنه ولې ډېر ضروري او مهم کار دی؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | د افغانانو موجوده هېواد چې لوی احمد شاه بابا په رسمي توګه د افغانستان په نوم نومولی دی. دغه هېواد د طبیعي زېرمو له پلوه ډېر غني دی او له بلې خوا د آسیا، اروپا لویو وچو تر منځ د دروازې په شان( د تلو راتلو) سوق الجشي اهمیت لري. د ورستیو فضایي پلټنو پر تکیې ویلای شو چې زموږ په دې غنی او غرني هېواد کې لاتراوسه پورې (۱۴۰۰) معدنونه کشف شوي دي. ددې طبیعي زېرمو په څنګ کې ګڼ شمېر، مثمر ځنګلونه، بهاند سیندونه، طبیعي زېرمې د هر وطن د اقتصاد په پیاوړتیا، د ولسونو په هوساینې او د چاپېریال په پاکی، زرغونتیا او |

| | |
|---|---|
| ودانولو کې فعال رول لوبوي. افغانان باید خپلې طبیعي زېرمې له چور او چپاول او قاچاق څخه وژغوري. زموږ حکومت مسوولیت لري چې دغه زېرمې په کار واچوي او خپل ټولنیز ژوند او کنډواله شوی ټاټوبی پرې ودان او ښېرازه کړي. | |
| زده‌کوونکي دې د هغو ولایاتو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي چې طبیعي زېرمې ولري او بیا دې ورته مناسبې جملې جوړې کړي. | کورنۍ دنده |

## دوه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

<table>
<tr><th>د لوست موضوع</th><th colspan="2">خوشحال خان خټک</th></tr>
<tr><td>د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي</td><td colspan="2">زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– ستر شاعر خوشحال خان خټک به وپېژني.<br>– د نوی لوست متن به له تېروتنو څخه پرته ولوستلای شي.<br>– د ملي، تاریخي، ادبي شخصیتونو د ویاړونو درناوی به وکړي او د خپل شخصیت د جوړولو په فکر کې به شي.</td></tr>
<tr><td>انگیزوي پوښتنې:</td><td colspan="2">– آیا تاسو له پخوانیو شاعرانو څخه د خوشحال خان نوم اورېدلی دی؟<br>– څه فکر کوئ چې خوشحال خان څه ډول شاعر و؟</td></tr>
<tr><td colspan="3">د ښوونکي فعالیتونه<br>– ښوونکی دې په زده‌کوونکو باندې نوی لوست د ټولگي په مخ کې په وار سره په لوړ آواز تکرار کړي.<br>– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او بیا دې معنا او مفهوم زده‌کوونکو ته تشریح کړي.<br>د لوست نوی لغتونه دې له معناوو سره د تختې پر مخ ولیکي.<br>– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي وگماري چې یو بل ته له نوی لوست څخه املا ووایي، ښوونکی دې د تېروتنو په اصلاح کې ورسره مرسته وکړي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته شعر معنا کړي او په مفهوم دې خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې هر زده‌کوونکي ته دنده ورکړي چې یو بل ته د نوی لوست جملې د املا په ډول ووایي.</td></tr>
<tr><td>ارزونه</td><td colspan="2">– څوک د نوی لوست مطلب په لنډه توگه بیانولای شي؟<br>– څوک د نوی لوست دوه درې جملې د املا په ډول لیکلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې که سړی د خوشحال خان غوندې لوړ شخصیت ولري، هغه به د خپلو خلکو او هېواد په وړاندې څه مسوولیتونه ولري؟</td></tr>
<tr><td>اضافي معلومات</td><td colspan="2">خوشحال خان خټک د خانانو په منځ کې نومیالی خان، د پوځیانو په منځ کې زړور قوماندان( سر لښکر) د پلرونو په منځ کې د نوی اولادونو پلار او د شاعرانو، لیکوالانو په منځ کې د ادب لوی او بې ساری دریاب دی. ان تر دې پورې یې فوق العاده ښه استعداد درلود چې هغه په ډېر کم وخت کې دستار نامه او باز نامه کتابونه لیکلي دي. خوشحال خان خټک د شهباز خان خټک زوی، د یحیې خان لمسی، د ملک اکوړي کړوسی دی. نوموړی په ۱۰۲۲ هـ ق کال کې زېږېدلی او په ۱۱۰۰ هـ ق کال کې د ۷۸ کالو په عمر مړ شوی او د خټکو د اکوړې په لوړه غونډۍ کې خاورو ته سپارل شوی دی. خوشحال خان خټک د ځنکدن په وخت کې وصیت کړی و ((ما په داسې ځای کې ښخ کړئ چې د مغلو د اسونو گرد مې په قبر ونه لوېږي! لوی بابا خوشحال خان خټک ۲۵۰ ټوکه کتابونه لیکلي دي چې مشهور یې دا دي)) د خوشحال خان خټک کلیات، دستار نامه، باز نامه،اینه، بیاض، هدایه، فرخنامه، فراق نامه او نور ...</td></tr>
<tr><td>کورنۍ دنده</td><td colspan="2">زده‌کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د خوشحال خان خټک په اړه څو نوې جملې ولیکي.</td></tr>
</table>

# دریشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | صفت |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– نوی لوست به په روانه توګه ولوستلای او په مفهوم به یې وپوهیږي.<br>– د صفتونو په هکله به د نورو معلوماتو د حاصلولو لپاره خپلې مطالعې ته دوام ورکړي.<br>په خپلو لیکنو کې به د صفت نوم په سمه توګه وکارولای شي.<br>– په ژبه کې به د صفتونو په اهمیت وپوهیږي. |
| انګیزوي پوښتنې: | ښوونکی دې د نوی لوست سرلیک په تختې ولیکي او له زده‌کوونکو څخه دې داسې هڅوونکې پوښتنې وکړي:<br>– آیا تاسو له صفت سره اشنا یا ست او هغه پیژنئ؟<br>– څوک ویلای شي چې موږ په خپلو خبرو اترو کې صفتونه کاروو؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست له ځان سره په پټه خوله ولولي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي وګماري چې په وار سره نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ووایي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو وویشي، هرې ډلې ته دې د نوو لغتونو لیکلي کارتونه ورکړي چې جملې ورته جوړې کړي، بیا دې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې جملې په تختې ولیکي او ښوونکی دې زده‌کوونکي په ښو کلمو وستایي.
– ښوونکی دې د نوی لوست مهمې نقطې د تختې پر مخ ولیکي او بیا دې په ساده او روانه ژبه تشریح کړي.
– ښوونکی دې څو زده‌کوونکي په خپله خوښه پورته کړي او ترې ودې غواړي چې د نن ورځې د لوست مفهوم په ساده ژبه بیان کړي.

| ارزونه | – څوک کولای شي متن سم او روان ولولي؟<br>– آیا تاسې د نوی لوست په لوستلو سره د اصلي، نسبتي، مجرد او اشاري صفتونو تر منځ توپیر کولای شئ؟<br>– څوک کولای شي چې څو جملې د تختې پرمخ له یاده ولیکي او بیا ستاینوم په کې په نښه کړي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | صفت ته په پښتو ژبه کې ستاینوم وایي، په هرې ژبې کې ډیر او ضروري توکي دي او له خپل وصف شوي نوم سره یوځای راځي چې د صفت او موصوف ترکیبونه جوړوي.<br>لکه: تورې، سترګې، سور قلم، پوه هلک، مات دېوال، بېکاره سړی او نور چې پدې مثالونو کې (تورې، سور، پوه، مات، بیکاره) صفتونه او د (قلم، هلک، دیوال، سړی) کلمې موصوف بلل کیږي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې له هر ډول صفت څخه دوه مثالونه په جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې ولیکي. |

## څلور ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | قیمتي ډبرې |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د قیمتي ډبرو په خصوصیاتو او ارزښتونو به وپوهیږي.<br>– د خپل هېواد قیمتي ډبرې به وپېژني<br>– متن به سم او روان ولولي او وبه یې لیکي<br>– د خپل هېواد د څو قیمتي ډبرو په هکله به معلومات ورکړای شي<br>– په متن کې به د راوړل شوو کلمو مترادفې کلمې ولیکلای شي |
| انګیزوي پوښتنې: | – تاسو پوهېږئ چې زموږ په هېواد کې قیمتي ډبرې پیدا کېږي؟<br>– ستاسو په فکر قیمتي ډبرې له نورو ډبرو څخه څه توپیر لري؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي. نوی لغتونه دې له معناوو سره پر تختې ولیکي او د لوست په مفهوم دې ورته څرګندونې وکړي.
- زده‌کوونکي دې نوی لوست په وار سره په لوړ آواز ولولي او د لوست په مطلب دې ځان وپوهوي.
- ښوونکی دې د نوی لوست یوه یوه جمله د املا په ډول زده‌کوونکو ته ووایي او د امکان په صورت کې په ټولو یا زیاتو زده‌کوونکو دې دا فعالیت ترسره کړي.
- ښوونکی دې په متن کې د صفت کلمې د تختې پر مخ ولیکي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې یو یو زده‌کوونکی د صفت کلمې په جملو کې وکاروي. نور زده‌کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي
- ښوونکی دې څو زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چې یو یو تن دې په وار یوه یوه جمله ووایي، دویم زده‌کوونکی دې هماغه جمله د تختې پرمخ ولیکي.

| | |
|---|---|
| ارزونه | – څوک متن سم او روان لوستلای شي؟<br>– څوک د قیمتي ډبرو په هکله خپل معلومات ټولګیوالو ته ویلای شي؟<br>– څوک د متن جملې د املا په ډول د تختې پر مخ لیکلای شي؟<br>– موږ او تاسو د خپل هېواد د قیمتي ډبرو په اړه څه مسوولیت لرو؟<br>– ویلای شئ چې د قیمتي ډبرو څخه کوم شیان جوړېږي؟ |
| اضافي معلومات | د ځمکې او نورو فضایي صورتونو په جوړښت کې قیمتي کاني، نجیبه فلزات، تېل، ګازونه او اوبه چې حیاتي مایع بلله کېږي. لږ او ډېر پیدا کېږي. زموږ هېواد چې د ځمکې د کرې یوه کوچنۍ برخه ده ګڼ شمېر کانونه لري لکه: لعل،یاقوت، زمرد، لاجورد، بېروج، شاه مقصود او داسې نور. موږ افغانان ملي دنده لرو چې له خپلو طبیعي منابعو څخه ټینګه ساتنه وکړو او د هېواد د آبادولو په نیت یې په کار واچوو. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې له متن څخه څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## پنځه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | کمپیوټر |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– کمپيوټر به وپيژني.<br>– د نړۍ له نوواختراعاتو او اکتشافاتوځخه به خبر شي.<br>– متن به سم ولوستلای او وليکلای شي.<br>– د متن په مفهوم به وپوهيږي.<br>– د نو ي لوست جملې به د املا په ډول وليکلای شي.<br>– د کمپيوټر د زده‌کړې په خاطر به مطالعې او عملي کار ته پاملرنه وکړي. |
| انگيزوي پوښتنه: | تاسو کمپيوټر ليدلی او د هغه په هکله څه ويلای شئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې د تېر لوست ارزونه وکړي او بيا دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست په چوپتيا ولولي.

– ښوونکی دې نوی لغتونه له معناووسره د تختې پرمخ وليکي.

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ آواز ولولي، د نوی لوست معنا او مفهوم دې ورته تشريح کړي، بيا دې په زده‌کوونکو باندې په وار سره د ټولگي په مخ کې په لوړ آواز تکرار کړي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو وويشي، او هرې ډلې ته دې د کلمو ليکلي کارتونه ورکړي ترڅو ورته جملې جوړې کړي. د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې جملې د تختې پرمخ وليکي.

– ښوونکی دې د کمپيوټر د لوست ځينې جملې د املا په توگه پر زده‌کوونکو باندې په کتابچو کې وليکي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په څو ډلو وويشي او ترې ودې غواړي چې په خپلو منځو کې دغه لاندې پوښتنې ځواب کړي. الف: موس د کمپيوټر کومه برخه ده؟ ب: مانيتور څه ته وايي؟ ج: سي پی يو په کمپيوټر کې څه شی دی؟ د: کيبورډ په کمپيوټر کې څه شی دی؟

– ښوونکی دې څو زده‌کوونکي په خپله خوښه پورته کړي او ترې ودې غواړي چې د لوست مفهوم بيان کړي.

| ارزونه | – څوک نوی لوست سم لوستلای شي؟<br>– څوک د کمپيوټر په اړه لنډ معلومات ورکولای شي؟<br>– څوک په نني عصر کې د کمپيوټر ارزښت بيانولای شي؟<br>– څوک ويلای شي چې د کمپيوټر لوست تاسو ته څه ارزښت لري؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | کمپيوټر د معاصرې تکنا لوژۍ له جملې څخه يو ډېر مهم ضروري او گټور ماشين دې. چې په لوړ سرعت، ښه کيفيت ليکل کولای شي موږ کولای شو په کم وخت کې د کمپيوټر په مرستې نورو هېوادونو ته برښنا ليکونه (ايميلونه) واستوو. کمپيوټر په برښنا کار کوي. کمپيوټر ډېره قوي حافظه لري چې موضوعات تر ۹۹۹ کلونو پورې خوندي ساتلی شي. په معاصره پرمختللې نړۍ او شتمنو هېوادونو کې ټول دولتي د سوداگرۍ، پوځي، سياسي، ادبي، ټولنيز کارونه انسانان د کمپيوټر په وسيله |

| | |
|---|---|
| | سر ته رسوي. د ښوونې او روزنې سیستم کې کمپیوټر په زړه پورې ونډه لري او فعال رول لوبوي. زده‌کوونکي باید وهڅول شي ترڅو په ښوونځی او کورسونو کې کمپیوټر زده‌کړي. په اوسني مهال کې چې د چا کمپیوټر، انټرنېټ او نورې تخنیکي وسیلې زده وي هغه خپل ځانته ګټور کارونه پیدا کولای شي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د کمپیوټر په هکله څو کرښې له متن څخه په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## شپږ ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ضمیرونه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– ضمیرونه به وپېژني.<br>– ضمیرونه به په سمه توګه وکارولای شي.<br>– له ضمیرونو څخه به په عملي توګه کار واخیستلای شي.<br>– د ضمیرونو په اهمیت به پوه شي او کوښښ به وکړي چې په خپلو لیکنو او خبرو اترو کې یې په خپل ځای وکاروي. |
| انګیزوي پوښتنه: | – ستاسو په نظر ضمیرونه څه ډول کلمې دي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي. د نوی لوست معنا او مفهوم دې ورته بیان کړي.

– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو په وار سره د ټولګي په مخ کې تکرار کړي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي، د کلمو لیکلي کارتونه دې ورکړي، چې جملې ورته جوړې کړي.د هر ګروپ استازی دې خپلې جملې د ټولګي په مخ کې ولولي ښوونکي دې ګروپونه سره پرتله او د وړ ګروپ ستاینه دې وکړي.

| ارزونه | – څوک کولای شي څو شخصي ضمیرونه د تختې پرمخ ولیکي؟<br>– آیا د ضمیرونو په پوهېدو سره ستاسو په معلوماتو کې زیاتوالی منځ ته راغی او له نورو کلمو څخه یې توپیرولای شئ؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | نومونه (اسمونه) معنا لرونکې کلمې دي. موږ کولای شو چې په خپلو خبرو اترو او لیکنو کې د نومونو پر ځای د هغوی معادل (ضمیرونه) وکاروو، ضمیرونه بېلابېل ډولونه لري چې د شپږم ټولګي پښتو کتاب کې په تفصیل سره بیان شوی دي. ضمیرونه په جملو کې د نومونو د تکرار د مخنیوي په خاطر کارول کېږي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې پنځه ضمیرونه په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي. |

## اوه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | لنډۍ |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– لنډۍ به وپیژني.<br>– د لنډیو توپیر به له نورو شعرونو سره وکړای شي.<br>– لنډۍ به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>– د لنډیو په اهمیت به وپوهیږي. |
| انگیزوي پوښتنې: | – آیا تاسو د لنډیو په برخه کې څه اورېدلي دي؟<br>– تاسو ویلای شئ چې لنډۍ به څه ډول اشعار وي؟<br>– څوک ویلای شي چې لنډۍ یوازې په کومه ژبه کې موجودې دي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي، معنا او مفهوم دې زده‌کوونکو ته تشریح کړي.
– ښوونکی دې په زده‌کوونکو باندې نوی لوست په وار سره د ټولگي په مخ کې په لوړ آواز ولولي
– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، یو تن دې په خپله خوښه یوه لنډۍ ووایي او دویم تن دې هماغه لنډۍ د تختې پرمخ ولیکي.
– ښوونکی دې په زده‌کوونکو باندې په وار سره لوست تکرار کړي، لوستل شوې لنډۍ دې په یاد ورباندې زده‌کړي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د لنډیو په هکله د هغوی د سویې په پام کې نیولو سره تشریح او توضیح ورکړي.

| ارزونه | – څوک د لنډیو په شکل او فورم خبرې کولای شي؟<br>– څوک ځینې مترادفې کلمې د تختې پرمخ لیکلای شي؟<br>– څوک کولای شي د نوی لوست ځینې جملې او لغتونه د املا په ډول ولیکي؟<br>– څوک کولای شي چې څو لنډۍ له یاده خپلو ټولگیوالو ته ووایي؟<br>– څوک ویلای شي چې لنډۍ څه ډول شعرونه او د کومې ژبې اصلي مال دې؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | لنډۍ هغه شعر ته ویل کېږي چې له دوو کرښو( یو بیت) څخه جوړ شوی وي. لومړۍ کرښه یې ( ۹) سېلابونه او دویمه کرښه یې( ۱۳) سېلابونه لري. لنډۍ له پښتو ژبې پرته په نورو ژبو کې نه ترسترگو کېږي. د لنډیو دقیق شمېر نه دی معلوم. گڼ شمېر لنډۍ د ښځو له خوا جوړې شوي دي. د لنډیو شاعران نه دي معلوم هر شاعر، لیکوال با احساسه (پښتنې او پښتون) د خپل توان او ذوق برابرې لنډۍ جوړې کړي او ټولنې ته یې خوله په خوله وړاندې کړې دي. سندرغاړي، سازیان (هنر مندان) لنډۍ له سروکو سره یو ځای کوي او د ځانگړې، موزون او ښکلي آهنگ په شکل یې هېوادوالو ته وړاندې کوي. لنډۍ د شفاهي ادب یو جز (توکې) دي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې په خپله خوښه دوه یادرې لنډۍ په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## اته ویشتم لوست

### د تدریس لارښود پلان

### د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | آیودین |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– په دې به وپوهېږي چې آیودین څه ته وایي.<br>– د آیوډین منبع به وپیژني او د انسان په جسمي وده کې به د هغه په ارزښت وپوهېږي.<br>– نوی لوست به په روانه توگه ولوستلای شي او په مفهوم به یې وپوهېږي.<br>– نوی لغتونه به په جملو کې وکاروي او مترادف شکل به یې ولیکلای شي.<br>– د آیودین په روغتیایي ارزښت به وپوهېږي او د یوه ځوان په توگه به دا مسوولیت احساس کړي. چې په دې هکله نوروته لارښوونې وکړي. |
| انگیزوي پوښتنې: | – تاسو د آیودین کلمه اورېدلې او له هغه سره اشنایي لرئ؟<br>– ستاسو په فکر ایوډین زموږ په روغتیا او سلامتۍ کې څه ارزښت لري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>– ښوونکی دې نوی لوست زده‌کوونکو ته په لوړ آواز ولولي، بیا دې ورته تشریح او توضیح کړي او وروسته دې په زده‌کوونکو په وارسره د ټولگي په مخ کې په لوړ او مناسب آواز تکرار کړي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکي وگماري چې په دوه کسیزه توگه د متن لغتونو ته یوه یوه جمله جوړه کړي. او ځینې جملې دې بیا د ټولگي په مخ کې ولوستل شي.<br>– ښوونکی دې لاندې جملې د تختې پر مخ ولیکي او دجملو له مخې دې لوست په ښه توگه تشریح کړي.<br>– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي یوه زده‌کوونکي ته دې خپله ښوونکی یوه جمله دکتاب له مخې ووایي، لومړی زده‌کوونکی دې هغه ولیکي او دویم زده‌کوونکی دې هماغه جمله اصلاح کړي او نور زده‌کوونکي دې د هغوی څارنه وکړي.<br>– ښوونکی دې لوستل شوی متن د املا په ډول زده‌کوونکو باندې ولیکي. | |
| ارزونه | – څوک د نوی لوست په معنا او مفهوم وپوهېدل؟<br>– څوک د نوی لوست جملې د املا په ډول لیکلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې د نوی لوست په مرستې څنگه کولای شو چې خپله روغتیا له ځینو ناروغیو څخه وساتو؟<br>– څوک د نوی لوست مشکل لغتونه معنا او مترادف شکل یې د تختې پرمخ لیکلای شي؟ |
| اضافي معلومات | آیودین یوه طبیعي ماده ده. چې په غوښه، سبو او کبانو کې ډېر پیدا کېږي. مصنوعي ډول یې هم د کیمیاوي تعاملاتو په پایله کې جوړېږي. آیودین د روغتیا لپاره یو ضروري عنصر دې. که چېرې د چا په بدن کې آیودین کم شي د جاغور په ناروغۍ اخته کېږي. زده‌کوونکو ته باید لارښوونه وشي چې د سبو، غوښو، آیودین لرونکې مالگې او کبانو کافي اندازه په خوړو کې هم پیدا کېږي. او طبیعي منرال بلل کېږي. د آیوډین بیخي نشتوالی په وجود کې د مړینې سبب کېږي. د آیودین لږوالی د ذهني کمزورتیا لامل گرځي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د ایوډین په هکله څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## نهه ویشتم لوست
## د تدریس لارښود پلان
## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | عدد |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– شمېر نوم یا عددونه به وپېژني.<br>– متن به سم ولوستلای شي او د عددونو په سمې کارونې به وپوهیږي.<br>– د عددونو په اهمیت به وپوهېږي او په خپل ځای کې به یې په سمه توگه وکاروي. |
| انگیزوي پوښتنې: | – تاسو کله د عدد نوم اوریدلی دی؟<br>– عدد نوم څه ته وایي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ آواز ولولي.
– د لوست معنا او مفهوم دې په ساده ژبه بیان کړي، نوی لغتونه دې له معناووسره د تختې پرمخ ولیکي.
– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو په وارسره د ټولگي په مخ کې په لوړ آواز تکرار کړي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو وویشي، هرې ډلې ته دې د کلمو لیکلي کارتونه ورکړي، ترڅو زده‌کوونکي کلمو ته مناسبې جملې جوړې کړي. بیا دهر گروپ استازی دې د خپل گروپ جملې پرتختې ولیکي ودې لولي او ښوونکی دې د ښو جملو ستاینه وکړي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د انسان د بدن غړي د عدد او معدود په توگه مثال راوړي لکه: دوه سترگې، یو سر، پنځه گوتې، دوه لاسونه، دوې پښې.
– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي وگماري چې یو بل ته املا ووایي، ښوونکی دې ورسره په اصلاح کې مرسته وکړي.

| ارزونه | – څوک د نوی لوست معنا او مفهوم په لنډ ډول بیانولالی شي؟<br>– څوک متن سم لوستلای شي؟<br>– څوک د نوی لوست جملې د املا په ډول لیکلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې له دې لوست څخه مو کوم غوره ټکي زده‌کړل؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | شمېر نوم هغه خپلواکه معنا لرونکې کلمه ده چې له نومونو سره یو ځای د (عدد او معدود) په توگه کارول کېږي چې هدف ورڅنې د هغه شمېر او تعداد دی لکه: یو کتاب، دوه سترگې، څلور قلمونه، یوه ونه او نور...<br>په پورته مثالونو کې (یو، دوه، څلور، یوه) عدد او (کتاب، سترگې، قلمونه، ونه) معدود بلل کېږي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د عدد او معدود څلور مثالونه په جملو کې وکاروي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | میرمن زینبه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د پښتو ژبې مشهوره شاعره مېرمن زینبه به وپېژني.<br>– نوی لوست به په روانه توگه ولوستلای شي او په مفهوم به یې وپوهېږي.<br>– په متن کې د راوړل شوو کلمو او ترکیبونو په کارولو به وپوهیږي. |
| انگیزوي پوښتنه: | تاسو د مېرمن زینبې د پوهې او دهغې د شعرونو په هکله څه فکر کولای شئ؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو باندې په وار سره د ټولگي په مخ کې په لوړ او مناسب آواز تکرار کړي.

– ښوونکی دې د نوی لوست لغتونه له معناووسره د تختې پرمخ ولیکي او بیا دې له زده‌کوونکو څخه د نوی لوست مفهوم وپوښتي.

– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي وگماري چې یو بل ته د نوی لوست متن د املا په ډول ووایي.

– ښوونکی دې د مېرمنې زینبې د متن څو جملې په لوړ آواز ووایي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې دغه جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې خپله ښوونکی د جملو سمه بڼه د تختې پر مخ ولیکي او زده‌کوونکي دې خپلې لیکنې ورسره پرتله کړي.

– ښوونکی دې څو زده‌کوونکي د ټولگي له هرې برخې څخه په وار سره پورته کړي او ترې ودې غواړي چې دلوست د مفهوم په اړه خبرې وکړي.

| ارزونه | – څوک د مېرمن زینبې لوست لوستلای او معنا او مطلب یې بیانولالی شي؟<br>– څوک دنوی لوست مفردو کلمو ته د جمعې او د جمعو کلمو ته مفرده بڼه لیکلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې د مېرمن زینبې شعر څه معنا او مفهوم لري؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | د تاریخ په اوږدو کې ډېرې زیاتې نومیالۍ، اتلې او د لوړ استعداد لرونکې لونې زېږېدلي دي چې هرې یوې خپل قام او هېواد والو ته ستر ویاړونه گټلي او راتلونکو نسلونو ته یې په میراث پرې ایښې دي. د گڼ شمېر نومیالیو پېغلو، میندو او مېرمنو په لړ کې د آغلو مېرمنو لکه: نازو انا، بي بي نېکبختې، زرغونې کاکړ، رابعې، مېرمن ملالې، سپینې ادې، غازي ادې، مېرمن عینو، میرمن الایي او داسې نور نومونه د یادولو وړ دي یوه له دې نومیالیو میرمنو څخه میرمن زینبه ده چې د پښتو ژبې عالمه، مستعده شاعره، ښوونکې او د شاه حسین هوتکي سلاکاره وه. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د لوست څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## يو دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د پنسل اختراع |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د لومړي ځل لپاره به د پنسل د جوړېدو په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>– په ورځينۍ ژوند کې به د قلمونو په ارزښت وپوهيږي.<br>– له قلمونوڅخه به په ليک او لوست کې په سمه توګه ګټه واخيستلای شي. |
| انګيزوي پوښتنه: | آيا تاسې پوهېږئ چې د پنسل قلم به څه ډول جوړ شوی وي؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

– ښوونکی دې نوی لغتونه له معناووسره د تختې پرمخ وليکي.
– ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي، بيادې تشريح او توضيح کړي.
– ښوونکی دې لوست په زده‌کوونکو باندې په وارسره د ټولګي په مخ کې تکرار کړي.
– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي وګماري چې يو بل ته د نوی لوست جملې د املا په ډول ووايي، يو تن دې املا وليکي او بل دې ورته اصلاح کړي.
– ښوونکی دې له ځو زده‌کوونکوڅخه وغواړي چې په وار سره د متن په مطلب او مفهوم خبرې وکړي او خپله ښوونکی دې زده‌کوونکي په ښو الفاظو لکه: آفرين، شاباش، ډېر ښه او نور وستايي.

| ارزونه | – څوک نوی لوست په روانه توګه لوستلای او په معنا او مطلب يې خبرې کولای شي؟<br>– څوک د نوی لوست جملې د املا په ډول ليکلای شي؟<br>– څوک کولای شي چې د پنسل د ارزښت په اړه څو لنډې جملې ووايي؟<br>– څوک ويلای شي چې د پنسل د تاريخچې پېژندل زموږ په ژوند کې څه رول او اهميت لري؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | په معاصرې نړۍ کې زموږ هېوادوال او نړۍ وال د قلم (خوکار، رنګ لرونکي) پنسل، مارکر، ټيپ، کمپيوټر په ذريعه ليکل کوي. په ښوونځي کې ښوونکی او زده‌کوونکي د تباشير په واسطه په تورو تختو او د سلېټ په تختې ليکل کوي. هغه مهال چې قلم، پنسل، خود کار قلم، ټيپ او کمپيوټر نه ووکشف شوي، مېرزآيانو، ملآيانو، شاعرانو او ليکوالو د کرکو قلمونه جوړول. غنم، وربشې او وريجې به يې ټکولې يو څه ګوره او اوبه به يې ورسره ګډولې سياهي( رنګ) به يې ورڅخه جوړاوه او خطونه به يې پرې ليکل، له پخوانيو زمانو څخه ځينو خلکو په زعفرانو او مشکو هم ليکل کول يا به يې د تبۍ د تورکو اوسپنې خاورې په واسطه هم ليکل کول. ويل کېږي چې د کرکو له قلمو څخه د مخه د ليکلو وسيلې د مرغانو د وزرونو او لکۍ ګانو ښکې وی. زموږ په سپېڅلي مذهبي کتاب (قرآن کريم) کې يو سورت د (ن. والقلم) په نوم شته، ددې معنا دا ده چې دقلم عمر له ۱۴۰۰ ــ ۱۵۰۰ کالو څخه هم زيات دی. بله دا چې انجيل، زبور، تورات، هم د ځارويو په پوستکو او ډبرو ليکل شوي. په تيرو (لرغونو) زمانو کې د اوسپنيزو قلمونو په وسيله د ډبرو او لرګيو پرمخ ليکل کيدل |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې نوی لوست د کتاب له مخې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## دوه دېرشم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **عبدالرووف بېنوا** |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌كوونكي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>– متن به په روانه توگه ولوستلای او خبرې به پرې وکړای شي.<br>– د متن په معنا او مطلب به وپوهېږي.<br>– د متن کلمې او جملې به د املا په توگه وليکلای شي.<br>– د عبدالرووف بېنوا په هکله به نورو ته معلومات ورکړای شي. |
| انگيزوي پوښتنه: | آيا تاسې د عبدالرووف بېنوا په هکله څه ويلای شئ؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې د نوي لوست سرليک د تختې پرمخ وليکي او نوی لوست دې په لوړ او مناسب آواز ولولي او بيا دې د نوی لوست لغتونه له معناووسره د تختې پرمخ وليکي.

– ښوونکی دې نوی لوست په څو زده‌کوونکو په وارسره دټولگي په مخ کې ولولي او په لوستلو کې دې ورسره مرسته وکړي.

– ښوونکی دې لوست په ساده ژبه زده‌کوونکو ته تشريح او توضيح کړي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي، هرې ډلې ته دې د کلمو ليکلي کارتونه ورکړي، ترڅو هغوی ورته مناسبې جملې جوړې کړي. د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې جملې پر تختې وليکي او ښوونکی دې ورړ زده‌کوونکي وستايي.

– ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په وارسره د عبدالرووف بېنوا په هکله لنډې خبرې وکړي.

| ارزونه | – څوک کولای شي چې د لوست په مطلب خبرې وکړي؟<br>– څوک کولای شي چې د لوست لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | |
| کورنۍ دنده | زده‌كوونكي دې د عبدالرووف بېنوا د خدمتونو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي؟ |

**دري دېرشم لوست**

**دتدريس د لارښود پلان**

**د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه**

<table>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td>زلزله څنګه منځته راځي؟</td></tr>
<tr><td>د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي</td><td>زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د زلزلې په هکله به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د متن سم لوستل او ليکل به وکړای شي.<br>– د زلزلې د پېښېدو په وخت کې به د ځان د ژغورنې د خوندي ځايونو په فکر کې شي.</td></tr>
<tr><td>انګيزوي پوښتنې:</td><td>– تاسې پوهېږئ چې ولې زلزله پېښېږي؟<br>– ستاسو په فکر د زلزلې په وخت کې بايد څه وکړو؟</td></tr>
<tr><td colspan="2">د ښوونکي فعاليتونه<br>– ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي او بيا دې توضيح او تشريح کړي او ورپسې دې په زده‌کوونکو په وار سره د ټولګي په مخکې د کلمو سم تلفظ تکرار کړي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو وويشي او هغوی ته دې د کلمو ليکلي کارتونه ورکړي ترڅو هغوی کلمو ته جملې جوړې کړي او د هرې ډلې استازی دې بيا د خپلې ډلې جملې په تختې وليکي او نور زده‌کوونکي دې ورته اصلاح کړي.<br>– ښوونکی دې نوی لوست (زلزله) په ښه ډول تشريح او مشکل لغتونه دې له معناوو سره د تختې پرمخ وليکي او زده‌کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې لغتونه له معناووسره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، يو زده‌کوونکي ته دې څو جملې د کتاب له مخې ووايي، هغه دې وليکي او دويم زده‌کوونکی دې هماغه ليکلې جملې اصلاح کړي او نور زده‌کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي.</td></tr>
<tr><td>ارزونه</td><td>– څوک کولای شي چې نوی لوست په سم تلفظ او ښکلي آواز ولولي؟<br>– څوک ويلای شي چې د زلزلې د پېښېدو په وخت کې بايد چېرې ولاړ شو او څه وکړو؟<br>– څوک د لوست لغتونه له معناوو سره د املا په ډول ليکلای شي؟<br>– څوک د لوست په مفهوم او ارزښت وپوهېدل؟<br>– څوک ويلای شي چې د زلزلې زور او شدت په څه شي اندازه کېږي؟</td></tr>
<tr><td>اضافي معلومات</td><td>د زلزلې معنا د ځمکې ښوېدل (خوځېدل او ټکان خوړل) دي. دا چې زلزله څنګه منځته راځي؟ په دې هکله ځينې افسانې (فولکلوريک) نظرونه او عقايد هم د نړۍ د ولسونو او پرګنو په حافظو کې شته، خو علمي او ډاډمنه تکيه پرې نشي کېدلای. د زلزلې په هکله ځمکه پېژندونکي پوهان پدې عقيده دي چې د ځمکې په (تل او منځ) کې د مګنېټ ډېرې او ګازونه د لوړ حرارت له امله د مايع په بڼه په خالي ځايونو کې سره راټولېږي، ددغو موادو ټولېدو او تراکم په پايله کې د ګازونو فشار لوړېږي او ځان ته مجبوراً د وتلو لار لټوي. د ګازونو په ذريعه د ځمکې په تل کې چاودنې کېږي، کله کله ګازونه د ځمکې د درزونو له لارې راوځي، د راوتلو په وخت کې د ځمکې همغې برخې ته ټکان ورکوي. چې دې ټکانونو ته زلزله وايي. کله کله زلزلې کلي، مېنې، ښارونه، سيمې او هېوادونه ورانوی او په کنډوالو يې بدلوي.</td></tr>
<tr><td>کورنۍ دنده</td><td>زده‌کوونکي دې د نوی د لوست نوو لغتونو ته په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړي.</td></tr>
</table>

## څلور دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | عبدالرحمن بابا |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د رحمن بابا ادبي شخصیت به وپېژني.<br>– د رحمن بابا له شعر او شاعرۍ سره به بلد تیا پیدا متن به سم ولوستلای او لیکلای شي.<br>– د ستر صوفي او شاعر عبدالرحمن بابا د لوست په پوهېدو سره به د هغه له شعر او شاعرۍ سره علاقمندي پیدا کړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | آیا تاسو د رحمن بابا نوم اورېدلی او هغه پېژنئ؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي. وروسته دې توضیح او تشریح کړي.<br>– ښوونکی دې څو زده‌کوونکي په خپله خوښه وټاکي او ترې ودې غواړي چې د لوست مطلب په څو لنډو جملو کې بیان کړي.<br>– ښوونکی دې په شعر کې هم وزنه کلمې زده‌کوونکو ته وښيي، لکه : خار، لار، تار او داسې نور..<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکي وگماري چې یو یو تن د ټولگي مخې ته راشي همدا کلمې دې د تختې پر مخ ولیکي او په جملو کې دې وکاروي. | |
| ارزونه | – آیا تاسې د نوی لوست په لوستلو سره رحمن بابا وپېژانده؟<br>– څوک کولای شي د رحمن بابا په هکله خپل معلومات نورو ته بیان کړي؟<br>– څوک کولای شي د لوست څخه د مشکلو لغتونو معنا پر تختې ولیکي؟<br>– څوک کولای شي د لوستل شوو بیتونو په هکله خپل نظر بیان کړي؟ |
| اضافي معلومات | په پښتو ژبه کې ډېر شاعران تېر شوي دي او هر چا د خپل فطري استعداد او شعري قریحې له مخې هنري نظمونه او شعرونه تخلیق کړي، خپل پښت او تېر ته یې دقېمتي مرغلرو په څېر میراث پرې ایښي دي. خو پښتنا نه هر چا (هر شاعر) ته با نه وایي. دا له ویاړه ډک لقب یوازې د رحمن با با، خوشحال با با، حمید بابا په برخه شوی دی چې ځانته سبک او ځانگړی مکتب لري. ډېره ضروري او د یادولو وړ خبره خو دا ده چې صوفي عبدالرحمن د اخلاقو په برخه کې ډېر لوړ فکر او پاخه اشعار لري. ددې نومیالي ادېب او صوفي شاعر شعرونه د ده د وخت د دردونو ډېره ښه روښانه هنداره وه. د رحمان بابا ادبي شخصیت یو اړخیز نه بلکې څو بعدي دی. رحمان بابا دېني عالم و. د اسلام د سپېڅلي دېن ډېر ارشادات او لارښوونې یې په خپلو شعرونو کې ځای کړي دي. رحمان بابا رښتینی انسان، عدالت غوښتونکې حقپال او حق ویونکې افغان شاعر و. د رحمان بابا شعرونه د بل هر شاعر د شعرونو په پرتلې ډېر خواږه، روان، په زړ پورې ا و د ډېرو زیاتو خلکو په ذهنونو او حافظو کې حک شوي دي. د رحمان بابا ځای په پښتو کې بل هیڅ شاعر نشي نیولای اشرف خان هجري رحمان بابا ته د پیښور د واف (بلبل) لقب هم ورکړی دې. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د رحمان بابا د لوست څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## پنځه دېرشم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **فعل** |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د فعل په معنا او مفهوم به پوه او په جملو کې به يې وپېژني.<br>– فعلونه به په لیکنو کې سم وکاروي.<br>– نوی لوست به په روانه توګه ولوستلای شي او په مفهوم به يې وپوهېږي. |
| انګیزوي پوښتنې: | – آیا تاسو کله د فعل کلمه اورېدلې ده؟<br>– تاسې په خپلو خبرو کې فعلونه کاروئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست له ځان سره په چوپتیا ولولي، ښوونکی دې د لوست نوی لغتونه له معناوو سره پر تختې ولیکي، نوی لوست دې زده‌کوونکو ته توضیح او تشریح کړي او بیا دې نوی لوست په زده‌کوونکو په وارسره د ټولګي په مخ کې ولولي.

– ښوونکی دې دغه لاندې فعلونه د تختې پرمخ ولیکي او د هرې برخې په هکله دې بېلابېلې څرګندونې وکړي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې د تختې لیکنې په خپلو کتابچو کې ولیکي. الف: د فعل فعلونه ب: د ماضي یا تېرمهال فعلونه ج: د مستقبل یا راتلونکي زماني فعلونه د: د حال فعلونه

– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، یوه ته دې څو کلمې املا ووايي او دویم زده‌کوونکی دې هغو ته جملې جوړې کړي.

– ښوونکی دې څو جملې د تختې پر مخ ولیکي او بیا دې په وار سره یو یو زده‌کوونکی راوغواړي چې په نوموړو جملو کې فعلونه او د هغو ډولونه وښيي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي او هرې ډلې ته دې د کلمو لیکلي کارتونه ورکړي چې کلمې په جملو کې وکاروي، وروسته دې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې جملې د تختې پرمخ ولیکي.

| ارزونه | – څوک په متن کې د حال زماني فعلونه په نښه کولای او بیا يې د تختې پرمخ لیکلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې د فعلونو ناسمې کارونې په خبرو او لیکنه کې څه ستونزې رامنځته کوي؟<br>– څوک ویلای شي چې د فعلونو پېژندل په لیکنه او وینا کې څه ارزښت لري؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | د هر کار او عمل کول یا د هرې پېښې پېښېدل چې په یوې زماني (حال، ماضي او مستقبل) پورې اړه ولري. فعل بلل کیږي، لکه: ځم، راغله، لاړه، ګوري، څښي، لیکي، خاندي، ژاړي، لولي او.... |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې په خپله خوښه د تېرې زماني څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

**شپږ دېرشم لوست**

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه**

| د لوست موضوع | **لوی مخترع توماس (اډیسن)** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>- توماس اډيسن به وپيژني.<br>- متن به سم ولوستلای او سم وليکلای شي.<br>- د لوست مطلب درک او بيان کړای شي.<br>- د لوست په ارزښت به وپوهېږي او نور خلک او زده کوونکي نوې اختراعگانو ته وهڅوي. د لوست په پوهيدو سره به په دوی کې د ابتکار او اختراع روحيه پياوړې شي. |
| انگيزوي پوښتنه: | تاسو د بشر د سترو مخترعينو له پيژندنې سره مينه لرئ او څوک پيژنئ؟ |

## د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست له ځان سره په چوپتيا ولولي او ښوونکی دې د نوی لوست لغتونه له معناوو سره د تختې پرمخ وليکي، بيا دې ښوونکی نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او زده کوونکو ته دې د دوی په ژبه توضيح او تشريح کړي.
- ښوونکی دې دوو زده کوونکو ته دنده ورکړي چې يو بل ته د نوی لوست جملې د املا په ډول ووايي او د نه پوهېدو په صورت کې دې ښوونکی پوره مرسته وکړي.

| ارزونه | - چا د بشر لوی مخترع ادېسن وپيژانده او د لوست په مفهوم وپوهېده؟<br>- څوک ويلای شي چې برښنا د لومړي ځل لپاره چا منځته راوړه؟<br>- څوک غواړي چې د ادېسن غوندې ستر انسان شي او د نړۍ د انسانانو او افغانانو لپاره رښتيني خدمتگار وگرځي؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | د نابغه انسانانو ذهني قوه او استعداد د عادي انسانانو په پرتلې خورا زياته او قوي وي. نوابغ د خپل فکري قوت په مرستې کولای شي، اختراعات وکړي او داسې نوی څيزونه جوړ کړي، چې په ټولنيز ژوند کې وجود نه لري اللهﷻ انسان ته د ذکاوت (استعداد) فوق العاده قوت ورکړی دې. زموږ په هېواد کې هم ډېر نوابغ تېر شوي، لکه: سيدجمال الدين افغان، ابوريحان البيروني، صديق افغان او داسې نور. انسانان د خپل ذهن (ذکاوت) د کار او فعاليت په برکت هر څه جوړولای او منځ ته راوړلای شي. ادېسن امريکايي عالم و، هغه (۱۲۲) اختراعگانې کړې دي. نوموړی د نورو نوابغو له جملې څخه خاص او ځانگړی مقام لري. |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د نوی لوست لغتونه له معناووسره په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## اوه دېرشم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | رابعه بلخي |
| --- | --- |
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د يوې مشهورې او پياوړې شاعرې په توګه به رابعه بلخي وپېژني..<br>– نوی لوست به سم ولوستلای شي او په مفهوم به يې وپوهېږي.<br>– د نوی لوست جملې به د املا په ډول وليکلای شي.<br>– د لوست په پوهېدوسره د خپلوپخوانيو شاعرانوپه هکله خپلې مطالعې ته پراختيا ورکړي او د هغوی له ښو او ګټورو کړنو څخه به پيروي وکړي. |
| انګيزوي پوښتنه: | آيا تاسې د رابعي بلخي نوم اورېدلای او د هغې د شاعرۍ په هکله معلومات لرئ؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي. بيا دې زده‌کوونکو ته د لوست معنا او مفهوم تشريح کړي. او په زده‌کوونکو دې په وارسره د ټولګي په مخ کې تکرار کړي.

– ښوونکی دې درې تنه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، يوه ته دې يوه کلمه ووايي او بل تن دې کلمې ته جمله جوړه کړي، دريم تن دې د جملې تېروتنې اصلاح کړي.

– ښوونکی دې د نوی لوست لغتونه د تختې پرمخ له معناووسره وليکي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي، بيا دې نوی لوست ولولي او په روان ډول دې معنا کړي.

– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، يو دې د کتاب له مخې ځو جملې ووايي، دويم زده‌کوونکی دې هماغه جملې د املا په ډول وليکي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي وهڅوي چې په وار سره د رابعي بلخي د شعر يويو بيت ولولي او مطلب دې په ساده ژبه ټولګيوالو ته بيان کړي.

| ارزونه | – څوک د متن مطلب په لنډ ډول بيانولالی شي؟<br>– څوک د لوست جملې د املا په توګه ليکلای شي؟<br>– څوک د رابعې بلخي د شعر په ارزښت او اهميت وپوهېدل؟ |
| --- | --- |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې نوی لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## اته دېرشم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د فعل ريښه** |
| --- | --- |
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– نوی لوست به په روانه توگه ولوستلای شي او په مفهوم به يې وپوهېږي.<br>– د فعلونو د ريښو په اهميت او ارزښت به پوه شي.<br>– د فعلونو ريښې به وپيژني او په سمې کارونې به يې وپوهيږي. |
| انگيزوي پوښتنې: | – ستاسو په نظر ريښې د فعلونو په جوړښت کې څه رول لري؟<br>– آيا ويلای شئ چې ريښه د فعل کومې برخې ته ويل کېږي؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې نوی لوست له ځان سره په پټه خوله ولولي او ښوونکی دې نوی لغتونه له معناووسره په تختې وليکي.

– ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي اوبيا دې په ساده ژبه توضيح او تشريح کړي، وروسته دې په زده‌کوونکو باندې په وارسره د ټولگي په مخ کې په لوړ آواز تکرار کړي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي، او هرې ډلې ته دې دکلمو ليکلي کارتونه ورکړي ترڅو هر گروپ نوو کلمو ته جملې جوړې کړي. د هر گروپ استازی دې د خپل گروپ جملې د تختې پرمخ وليکي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته ووايي چې د لوست جملو ته پاملرنه وکړي، او ښوونکی دې دلوست کلمې او جملې په سم تلفظ ولولي، بيا له ويلو وروسته دې د لوست مهم ټکي دې د تختې پرمخ وليکي او په ښه توگه دې تشريح او مثالونه دې د تختې پرمخ وليکي، ترڅو زده‌کوونکي پرې ښه پوه شي.

– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، يو تن دې څو جملې ووايي او پر تختې دې وليکي، دويم زده‌کوونکی دې هماغه جملې لومړی اصلاح او بيا دې ريښې په کې وښيي.

– ښوونکی دې زده‌کوونکي په څو برخو ووېشي، او هرې ډلې ته دې له دغو لاندې کلمو څخه يويو جوړ شوی کارت ورکړي چې په ډله ييزه توگه په کارتونو کې ليکل شوو کلمو کې ريښې په نښه کړي. لکه: ښکاره ـــ خوړلی ـــ زړور ـــ پوه او نور

| ارزونه | – آيا تاسې د لوست په لوستلو د فعلونو په ريښو وپوهېدئ؟<br>– څوک کولای شي چې څو فعلونه د تختې پر مخ وليکي؟<br>– څوک ويلای شي چې د نوی لوست په لوستلو سره يې په پوهې او معلوماتو کې څه زياتوالی راغلی دی؟<br>– څوک د فعلونو د ريښو په ارزښت او اهميت خبرې کولای شي. |
| --- | --- |
| اضافي معلومات | هر څه سټه، بېخ او بنسټ (اساس) لري. په ژبه کې هم هره کلمه خپله سټه (ريښه، اساس) لري. که چېرې د کلمو له اصلي برخې (بنسټ) سره مختاړي او وروستاړي يو ځای شي، نورې کلمې ورڅخه لاس ته راځي، لکه: خوړ، خوړل، خوړل شوی وخوړ، خوړونکی، کړنه، کړل، کړی، ليد ليدنه، ليدونکې او نور... |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې په خپله خوښه د څو فعلونو ريښې له مختاړو او وروستاړو سره په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## نهه دېرشم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | کوچنيان |
| --- | --- |
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– نوی لوست به په روانه توگه ولوستلای او په مفهوم به يې وپوهېږي.<br>– د نوي لوست په مرستې به خپل ځان له کرکې او رخې څخه وژغوري او نور همزولي به هم له بغض او حسد څخه منع کړي.<br>د لوست په پوهيدو سره به دې ټکي ته متوجې شي چې د دوی د ښې تربيې او روزنې لپاره د الفت له يناوو څخه پيروي وکړي |
| انگيزوي پوښتنه: | ستاسو په فکر ماشومان کوم ښه صفتونه لري؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او بيا دې د لوست په مطلب رڼا واچوي او زده‌کوونکي دې وپوهوي چې کينه او حسد ښه کار نه دی.
– ښوونکی دې نوی لغتونه له معناوو سره د تختې پرمخ وليکي او له زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي او جملې دې ورته جوړې کړي.
– زده‌کوونکي دې د لوست په مفهوم او مطلب خبرې وکړي.

| ارزونه | – څوک نوی لوست په سم او روان ډول لوستلای شي؟<br>– څوک ويلای شي چې حسد يا رخه څه ډول عمل دی؟<br>– څوک د نوی لوست ارزښت په هکله څه ويلای شي؟ |
| --- | --- |
| اضافي معلومات | د اسلام په سپېڅلي دين کې بغض، کينه (کرکه، حسد) بده پديده گڼل شوې. هيڅ مسلمان بايد د بل مسلمان په وړاندې په خپل زړه او ذهن کې بد خيال (کرکه، بغض او حسد) ونه لري. د انسان په مقابل کې له کينې او کرکې څخه کار اخيستل لويه گناه او بد کار بلل شوی دی. تر دې پورې چې مسلمانانو ته لارښوونه شوې، که چېرې دوه تنه مسلمانان د کوم شي په سرله يو بل څخه خپه او خوابدي شي نو د درو ورځو په اوږدو کې بايد حتمي او ضرور سره پخلا شي. يو تن مسلمان بايد د بل په وړاندې له کرکې، بغض او کينې څخه هېڅکله او په هېڅ وجهه کار وانه خلي چې الله ﷻ به ورڅخه ناراضه نشي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## څلویښتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د پاک چاپیریال ګټې** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>− زده کوونکي به د چاپیریال په مفهوم او ارزښت وپوهیږي.<br>− نوی لوست به په روانه توګه ولوستلای او مطلب به یې په خپله ژبه ووایي.<br>− ددې متن په لوستلو سره به په دوی کې د چاپیریال د پاک ساتلو او سمسورتیا روحیه پیاوړې شي.<br>− په دې به وپوهیږي چې پاک چاپیریال د دوی په روغتیا او سلامتۍ کې اغېزمن رول لري. |
| انګیزوي پوښتنه: | − د پاک چاپیریال په ګټو او ارزښت پوهیږئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

− ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي، بیا دې د درس مفهوم او معنا ورته توضېح او تشرېح کړي ښوونکی دې لوست په زده کوونکو باندې په وار سره د ټولګي په مخ کې په لوړ او مناسب آواز تکرار کړي او بیا دې د لوست نوی لغتونه له معناوو سره د تختې پرمخ ولیکي.

− ښوونکی دې دوه دوه زده کوونکي وټاکي، یو بل ته دې له متن څخه د ځینو کلمو او جملو املا ووایي او بیا دې په مشورې سره اصلاح کړي.

− ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي او ترې ودې غواړي چې په خپلو منځو کې د چاپیریال د ګټو په هکله خبرې وکړي او بیا دې دهرې ډلې څخه یو تن خپلې خبرې نورو ته ووایي.

− ښوونکی دې دوه دوه زده کوونکي وهڅوي چې لوستل شوی متن یو د بل په مرسته ولولي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

| ارزونه | − څوک دنوی لوست جملې د املا په ډول لیکلای شي؟<br>− څوک د نوی لوست مفهوم په لنډه توګه ویلای شي؟<br>− ستاسو په فکر نوموړی لوست ستاسو په ژوند کې څه ارزښت لري؟ |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د چاپیریال ځینې ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## يو ځلويښتم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: ديوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | نشه يي توکي |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د نشه يي موادو، په بدو اغېزو او زيانونو به وپوهېږي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای او وليکلای شي.<br>– د لوست په مفهوم به وپوهېږي او خبرې به پرې وکړای شي.<br>– د نشه يي موادو په هکله به د معلوماتو په ارزښت او اهميت وپوهېږي او کرکه به ورڅخه وکړي. |
| انگيزوي پوښتنې: | – آيا ويلای شئ چې په نشه يي موادو باندې اخته کسان ولې خپل د ژوند چارې نشي سمبالولای؟<br>– آيا د نشه يي توکو د زيانونو په هکله څه ويلای شئ؟<br>– څه فکر کوئ چې په نشه اخته کسانو ته خلک په کومه سترگه گوري؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او بيا دې د نشه يي توکو د زيانونو په هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکړي. او زده‌کوونکو ته دې ووايي چې نشه يي توکي د اسلام سپېڅلي دين منع کړي، ځکه چې د انسان لپاره تباه کوونکي شيان دي.

– ښوونکی دې د څو نشه يي توکو نومونه د تختې پرمخ وليکي او بيا دې د اسلام د مقدس دين او خپل کلتور له مخې پرې رڼا واچوي او زيانونه دې بيان کړي.

– ښوونکی دې دوه دوه زده‌کوونکي وگماري چې له يو بل څخه دغه لاندې پوښتنې د سوال او ځواب په ډول تر سره کړي.

– د څو هغو توکو نومونه واخلئ چې بدن ته گټه رسوي؟

– د يوه نشه يي کس حالات په دوه درې جملو کې بيان کړئ؟

– ښوونکی دې څو لغتونه د تختې پر مخ وليکي او بيا دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره په خپله خوښه راشي او يو يو لغت دې لومړی معنا کړي او بيا دې په جملو کې وکاروي.

| ارزونه | – آيا تاسو د نشه يي توکو په زيانونو وپوهيدئ؟<br>– څوک د لوست لغتونه او د نشه يي توکو نومونه د املا په ډول ليکلای شي؟<br>– څوک ويلای شي چې ولې بايد له نشه يي توکو څخه کرکه او نفرت وکړو؟ |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده‌کونکي دې د نشه يي توکو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي. |

**دوه څلوېښتم لوست**

**د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس وخت: دیوې اونۍ درسي ساعتونه**

| د لوست موضوع | **د ځمکې په سطحې کې بدلونونه** |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– په دې به وپوهېږي چې د ځمکې په سطحې کې لوی او واړه بدلونونه هم منځ ته راځي.<br>– په دې به پوه شي چې لوی کمرونه ولې ټوټې ټوټې کېږي؟<br>– د لوست متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– په لوست کې به د لغتونو متضادې کلمې پیدا او د املا په ډول به یې ولیکلای شي.<br>– ددغه لوست په لوستلو سره په دا توانايي او فکر پیدا کړي چې لوی خدای(ج) دا ځمکه، غرونه، غټې ډبرې ټول په خپل قدرت سره پیدا کړي. |
| انگیزوي پوښتنه: | تاسو کله لیدلي دي چې په غرونو کې غټې او لویې ډبرې ماتې او یا دا چې درزونه یې کړي وي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي، توضیح او تشریح دې کړي او نوی لغتونه دې له معناووسره پرتختې ولیکي.

– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو په لوړ او مناسب آواز د ټولگي په مخ کې ولولي.

– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، یو زده‌کوونکی دې دویم زده‌کوونکي ته څو جملې د کتاب له مخې املا ووایي. او هغه دې ولیکي.

– ښوونکی دې دغه لاندې پوښتنې پر تختې ولیکي، بیادې په خپله خوښه دوه یا درې زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي او تر ې ودې غواړي چې هر زده‌کوونکی دې له یو بل څخه پوښتنې وکړي.

| ارزونه | – څوک کولای شي چې د نوی لوست لغتونه او جملې د املا په ډول ولیکي؟<br>– څوک کولای شي چې د لوست د لغتونو متضادې کلمې او دمتن جملې د املا په ډول ولیکي؟<br>– آیا کولای شئ چې د نوی لوست ارزښت او اړتیا بیان کړئ؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | بدلون( تغیر)، تحول، تکامل، ته وایي که وغواړو یا ونه غواړو زموږ له ځان څخه نیولې بیا د کایناتو په غېږ کې ټول مادي صورتونه د خدای ﷻ په امر پیدا کېږي، پوخوالي ته رسېږي، زړېږي او مري. د هر څیز په ظاهري بڼې او مضمون کې کیفي بدلون رامنځ ته کېږي، لکه: اوبه د حرارت د درجې د بدلون په پایله کې په واورې، ږلۍ، باران گنگل، پراس، وریځې، نم او شبنم بدلېږي. سړه هوا او تودوخه په خاورو، ډبرو، غرونو، ونو، بوټو، انسانانو، مرغانو او څارویو ژوره اغېزه کوي. ساړه د اوبو حجم زیاتوي او په ډبرو کې درزونه جوړوي. د باران اوبه چې د ډبرو په درزونو کې ننوځي. ډبرې ماتوي د ډبرو د ماتېدو په پایله کې شگې، کاڼي او خاورې منځ ته راځي. همدا ډول د فضایي دوړو د را لوېدو پر وجه هر کال د ځمکې مخ یو ملي متر لوړېږي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې نوی لوست په خپلو کتابچو کې په ښکلی خط سره ولیکي. |

## درى څلويښتم لوست

## د تدريس د لارښود پلان

## د تدريس وخت: ديوې اونۍ درسی ساعتونه

| د لوست موضوع | د کار ارزښت |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>● پوهنيزې<br>● مهارتي<br>● ذهنيتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د لوست متن به سم ولوستلای او وليکلای شي.<br>– د کا ر په گټو او ارزښت به وپوهيږي.<br>– په دې روحيه به وروزل شي چې په کار کولو سره د انسان ژوند جوړيږي او پرمختگ کوي. |
| انگيزوي پوښتنې: | – تاسې د کار د گټو په هکله څه ويلای شئ؟<br>– ستاسو په فکر کار کول روغتيا ته هم گټه لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه**<br>– ښوونکی دې د نوی لوست متن په لوړ او مناسب آواز ولولي او بيا دې د کار او زيار د گټو او ارزښت په هکله زده‌کوونکو ته معلومات وړاندې کړي.<br>– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو باندې په وار سره دټولگي په مخ کې ولولي.<br>– ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د تختې مخې ته په وار سره راشي او د متن يوه يوه جمله دې د املا په ډول وليکي او ښوونکی دې د هغوی تېروتنې ورته اصلاح کړي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکي وهڅوي چې په خپله خوښه د ټولگي مخې ته راشي او يوه يوه جمله دې د کار او زيار د گټو او ارزښت په هکله ووايي او ښوونکی دې زده‌کوونکي په ښو الفاظو سره وستايي.<br>– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، يو تن دې متن د کتاب له مخې ولولي او دويم زده‌کوونکی دې د هغه مطلب بيان کړي. | |
| ارزونه | – څوک د لوست لغتونه په جملو کې کارولی شي؟<br>– څوک د کار د گټو او ارزښت په هکله خبرې کولای شي؟<br>– څوک د متن مطلب په لنډه توگه ويلای شي؟ |
| اضافي معلومات | د اسلام په سپېڅلي دين کې کار او زيار ته ډېر زيات ارزښت او اهميت ورکړ شوی دی. د بشريت ستر لارښود حضرت محمدﷺ فرمايلي دي: هغه لاسونه چې په کار کې تناکې شي د مچولو دي او کسب گر ته د الله ﷻ دوست وايي. که چېرې د نړۍ دغو ټولو اقتصادي، علمي، فرهنگي، تخنيکي او نورو پرمختگونو ته وگورو او ښه ورته ځير شو نو ويلای شو چې دا هم د انسانانو د کار او زيار لاسته راوړنې دي. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې د متن لغتونه په جملو کې وکاروي. |

## څلور څلویښتم لوست

## د تدریس د لار ښو د پلا ن

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | بشر پالنه |
|---|---|
| د زده‌کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د بشر پالنې په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– ددغه لوست په لوستلو سره خپل ځان کې د بشر پالنې حس لا پیاوړی او نور خلک به دغه کار ته وهڅوي.<br>– د بشر پالنې د لوست په اهمیت، اړتیا او ارزښت به وپوهېږي او په ورځیني ژوند کې به یې عملي کړي. |
| انګیزوي پوښتنې: | – ستاسو په فکر بشر پالنه څه ته وايي؟<br>– مور ته ولې لازمه ده چې په بشر پالنې وپوهېږو؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

– ښوونکی دې نوی لوست په زده‌کوونکو په پټه خوله ولولي، بیا دې خپله په لوړ او مناسب آواز ولولي، توضېح او تشرېح دې کړي او په پای کې دې په زده‌کوونکو په وار سره د ټولګي په مخ کې تکرار کړي.
– ښوونکی دې نوی لغتونه له معناوو سره د تختې پرمخ ولیکي.
– ښوونکی دې زده‌کوونکي په دوو ډلو وویشي او څو نورو زده‌کوونکو ته دې د کلمو لیکل شوي کارتونه ورکړي ترڅو جملې ورته جوړې کړي او پاتې نور زده‌کوونکي دې د هغو جملې اصلاح کړي، ښوونکی دې د زده‌کوونکو له فعالیت څخه څارنه وکړي.

| ارزونه | – څوک د نوی لوست جملې د املا په ډول لیکلای شي؟<br>– د بشر پالنې لوست ستاسو په ذهن کې کوم بدلون رامنځته کړ؟<br>– ستاسې په نظر په بشر پالنې پوهېدل څه ګټه، اړتیا او ارزښت لري؟ |
|---|---|
| اضافي معلومات | په قرآنکریم کې انسان ته اشرف المخلوقات ویل شوی دی. دا ځکه چې عقل او شعور لري او د ژوندچارې په سلا، مشورې، همکارۍ، سنجش او پلان باندې سر ته رسوي. تولید کوي او له تېرو پېښو څخه د روښانه راتلونکې په هیلې مثبت الهام اخلي. خپله فزیکي قوه په مثمرو او ګټورو لارو چارو کې مصرفوي. د هر زیار او زحمت محصول یې اګاهانه او شعوري دی. تل د پرمختګ، ودې او بهبود پر لور پرمخ روان دي. بشر دوستي (همنوع پالنه) په نورو حیواناتو او ساکښانو کې غیر شعوري او ( غریزوي) ده خو په انسانانو کې انسان پالنه په شعوري ډول پالل کېږي، دا ځکه چې ټولنیز ژوند په متقابلې همکارۍ امکان پذیر دي او په بشري ټولنو کې هغه مهال د ستونزو او بد مرغیو مخه په ډېره اغېزمنه بڼه نیول کېږي چې د ټولنې وګړي د بشر پالنې عالي احساس ولري. |
| کورنۍ دنده | زده‌کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. (پیاوړی، غوره، پیرزو، چاپېریال) |

## پنځه څلويښتم لوست

## د تدريس د لا ر ښو د پلا ن

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د وطن ترانه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د وطن د ترانې لوست به د ترانې په توگه ولوستلای او په مفهوم به يې وپوهيږي.<br>– د ترانې لوست به سم وليکلای شي.<br>– ددغې ترانې په ويلو به له نورو ملي ترانو سره مينه پيدا کړي او په دغه برخه کې به مطالعې ته پراختيا او پرمختيا ورکړي.<br>– د ترانې په ارزښت او اړتيا به وپوهيږي او دغه اړتياوې به نورو ته بيان کړای شي. |
| انگيزوي پوښتنه: | ستاسو په فکر هر انسان ولې له خپل هيواد سره مينه لري؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

– ښوونکی دې د نوی لوست سرليک د تختې پرمخ وليکي او لوست دې په ځو زده کوونکو باندې د ټولگي په مخ کې په لوړ او مناسب آواز ولولي، بيا دې ښوونکی په خپله په سم تلفظ سره ولولي، تشريح او توضيح دې کړي.

– ښوونکی دې څو تنه زده کوونکي راپورته کړي او ترې ودې غواړي چې ترانه په ښکلي آواز د ترانې په ډول وواييي او ښوونکی دې زده کوونکي په ښو الفاظو سره وستايي.

– ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي، او له هرې ډلې څخه دې وغواړي چې يو يو بيت انتخاب کړي او په خپلو منځوکې دې پرې خبرې وکړي، بيا دې ورروسته د هرې ډلې استازی راشي او د خپلې ډلې خبرې دې نورو ته واوروي.

– ښوونکی دې د کلمو ليکلي کارتونه د مېز پر سر کېږدي او له څو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د کلمو يو کارت دې واخلي، هغه دې پرتختې وليکي او بيا دې په يوې مناسبې جملې کې وکاروي، نور زده کوونکي دې تېروتنې ورته اصلاح کړي.

| ارزونه | – څوک د وطن ترانه په سم تلفظ لوستلای او معنا او مطلب يې بيانولالی شي؟<br>– څوک د ترانې بيتونه د املا په ډول ليکلای او لغتونه يې معنا کولای شي؟ |
|---|---|